# د دردونو غبرګون

(د شعرونو مجموعه)

# نثار احمد بهين

دیجیتال جوړښت: قاسم آسمایی

خپرندوی: «د پرچم د لارې خپرونې»

# د دردونو غبرگون

(د شعرونو مجموعه))

## نثاراحمد بهین

دیجیتال جوړښت: قاسم آسمایی

خپرندوی: «د پرچم د لاری خپرونی»

د کتاب پېژندنه:

سرلیک: د دردونو غبرگون (د شعرونو مجموعه)

ویونکئ: نثار احمد بهین

دیجیتال جوړښت: قاسم آسمایی

خپرندوی:  «د پرچم د لاری خپرونی» دسمبر ۲۰۲۰

## فهرست


| | |
|---|---|
| ۱. سریزه | ۱ |
| ۲. د بامیانو بتان | ۲ |
| ۳. د مارچ اتمه | ٤ |
| ٤. نوی افغان | ٦ |
| ٥. پاکستانه وسوزې | ۹ |
| ٦. د زړه خواله | ۱۱ |
| ۷. خراب حال | ۱٤ |
| ۸. ځان ځاني | ۱٦ |
| ۹. د پلار په یاد | ۱۸ |
| ۱۰. دروغجن | ۲۱ |
| ۱۱. خپه یار | ۲۳ |
| ۱۲. یوازیتوب | ۲٥ |
| ۱۳. کله دی د بشریت په نوم بشر خوري | ۲٥ |
| ۱٤. د شهید هیله | ۲۷ |
| ۱٥. د زړه کتاب | ۲۸ |
| ۱٦. د انسان دښمن | ۲۹ |
| ۱۷. برقي بلا | ۳۱ |
| ۱۸. د کلي شیطان | ۳۳ |
| ۱۹. ډکه خوله | ۳٤ |
| ۲۰. منطق | ۳٥ |
| ۲۱. د مړو ننداره | ۳٦ |
| ۲۲. یوه پوښتنه | ۳۹ |

| | |
|---|---|
| ۲۳. کاشکي | ٤٠ |
| ۲٤. رسوايي | ٤٢ |
| ۲۵. د خوب بیا ن | ٤٧ |
| ۲٦. د خرو شهادتنامې | ٤٨ |
| ۲۷. د پادشاه خر | ٥١ |
| ۲۸. خوږه مینه | ٥٤ |
| ۲۹. د غم بلا | ٥٥ |
| ۳۰. عقده یی لیونیان | ٥٦ |
| ۳۱. د قام ناحقه ویندوی | ٥٨ |
| ۳۲. د کلي نجلۍ | ٦٠ |
| ۳۳. زمونږ کشتۍ | ٦٢ |
| ۳٤. یو بربنډ نظم | ٦٤ |
| ۳۵. د خلاصون لاره | ٦٦ |
| ۳٦. صنوبر | ٦٨ |
| ۳۷. مینه | ٦٩ |
| ۳۸. د منافقو آذان | ٧٠ |
| ۳۹. قاتلانو | ٧٢ |
| ٤٠. د حد ساتنه | ٧٣ |
| ٤١. ډموکراسی | ٧٥ |
| ٤۲. زما زړه | ٧٦ |
| ٤۳. غله رهبر ته! | ٧٧ |
| ٤٤. کاڼه غوږونه | ٧٩ |
| ٤۵. د سولې ارمان | ٨١ |

| | |
|---|---|
| ٤٦. د ژوند مزل | ٨٣ |
| ٤٧. د خاينو ځړول | ٨٥ |
| ٤٨. د اوبښ او خره ملګرتيا | ٨٦ |
| ٤٩. سر ماتول | ٨٩ |
| ٥٠. روزی او شراب | ٩٢ |
| ٥١. د آشنا ليدنه | ٩٤ |
| ٥٢. انځور ګر او تاريخ پوه | ٩٥ |
| ٥٣. د پارلمان غل | ٩٨ |
| ٥٤. مظلوم انسان | ١٠٠ |
| ٥٥. د مينې آرمان | ١٠١ |
| ٥٦. د پردو ګټو نوکر | ١٠٢ |
| ٥٧. يوه هيله | ١٠٣ |
| ٥٨. غل ملا | ١٠٥ |
| ٥٩. قاتله | ١٠٧ |
| ٦٠. د آخوند دليل | ١٠٩ |
| ٦١. پارلمانی ټاکنی | ١١١ |
| ٦٢. ټرامپ ته : | ١١٢ |
| ٦٣. ډوکه مارکانديدان | ١١٤ |
| ٦٤. خرتوب | ١١٦ |
| ٦٥. فساد | ١١٨ |
| ٦٦. د ټاکنو«چنجيان» | ١٢٠ |
| ٦٧. پخوانی منافقين | ١٢٢ |
| ٦٨. کرونا | ١٢٤ |

## سریزه

درنو دوستانو او لوستونکو:

په ډېرې خوشحالۍ سره غواړم ووایم چې دا دئ زما د شعرونو مجموعه د «دردونو غبرګون» تر عنوان لاندې ستاسو حضور ته وړاندې ده.

هيله‌من یم که چیرې په لوستلو یې ستاسو د شعري مینې تنده ماته نشي نو د ستړیا احساس هم ونکړئ.

دا ځکه چې زه نه شاعر یم او نه هم د شاعرۍ ادعا لرم، مګر کله کله د هیواد د وروستيو لسيزو غمېزو او د بېوزلو، بېګناه هیوادوالو ربړنې، ځورونې او وژنې له یوې خوا او د ګران افغانستان د وېجاړې لړۍ له بلې خوا هر با درده انسان دې ته اړ باسي چې د دې ناخوالو په وړاندې د خپل توان او وس په اندازه یو ډول نه یو ډول غبرګون وښیي .

نو زه هم د یوه انسان په صفت ځنې وخت له داسې یوه حالت سره مخامخ شم چې د خپل درد او احساس څرګندونه د نظمونو په قالب کې ځای پر ځای کړم او بیا هغه ستاسو عزتمندو هیوادوالو غوږونو ته ورسوم.

البته پدې مجموعه کې ځنې داسې نظمونه هم راغلي دي چې هغه د دغو بدمرغیو ښکارندوی نه، بلکې لوستونکي ته د ذهني آرامش برابرول او د هغه پر شونډو د مسکا راوستو په خاطر د مینې او محبت لاره کاږي.

کېدای شي چې پدې نظمونو کې د شعري صنعت کمزوري او د وزن او قافیې نیمګړتیاوې وي، د مخه بخښنه غواړم، خو ما خپل زیار ایستئ دی.

دا خبره هم باید ووېل شي چې د دې مجموعې په جوړښت او دیزاین کې د ګران او قدرمن دوست محترم «قاسم آسمایې» زیار او هڅې د یادولو وړ بولم او پدې وسیله ور څخه دزړه له کومي مننه کوم. په درناوې. (نثاراحمد بهین)

## د باميانو بتان*

که مې سر را ځنې غوڅ کاندې په زور

نشم خوله پټه نيولې هسې نور

حق باطل او باطل حق نشم بللی

په ښکاره نارې وهمه پر هر لور

چې اولاد د شياطينو دي راغلي

د اسلام تر نامه لاندې پر دې کور

غواړي خلک په اسلامي نامه دوکه کړي

مگر کړي د شيطانانو کړه هر لور

اوس چې ملک يې ټول ويجاړ او خرابه کړ

د فرهنگ په نړيدو دي بوخت په زور

د باميانو د بتانو تخريب غواړي

کوم بتان چې نه ضرر لري نه زور

دا د هغه تمدن پاتې آثار دي

چې نړۍ کې يې لوې نوم دئ او ستر شور

نړۍوال پدې آثارو ډير وياړيږي

دا جاهل ورته په قهر دي هسې نور

ننداره يې جوړه کړې په دې وجه

مخ يې تور دئ، مخ يې تور دئ، مخ يې تور

دا لا څه کړې چې دوی څه اورې له نورو

مسلمینو هم رټلي دي هر لور

څوک چې غواړي په رښتیا خدمت د دین کا

هغوی نه غواړي ویجاړ خپل کلی او کور

اراده او عقل یې دواړه هیواد غواړي

پر ځان فرض ګڼي عزت یې لکه مور

کوم کسان چې نن دښمن د خپل هیواد دي

حرامیان دي نه اولاد د خپلي مور

«بهین» لاس درته په دعا ده پاکه ربه

دا اوباش ته سم ژوندي ښخ کړې په ګور

**ماینز ـ جرمنی ۴/۰۳/۲۰۰۱**

---

* دا نظم هغه وخت ترتیب شوی وو کله چې طالبانو غوښتل د بامیانو بتان و نړوی.

## د مارچ اتمه

څه بدلون دئ را روان زمونږ په لوري
بیا فرصت په لاس راغلئ زما خوري
وايي هرې تورې شپې نه پس سبا وي
د سبا په وخت رڼا وي په هر لوري
د ړندو بادشاهي تيره په حسرت شوه
ته ځليږې هرې خوا ته لکه ستوري
ستا د عزم او ارادې نه زه قربان شم
چې د حق په لاره درومې او تل ښورې
که هر څومره ظلم زياتي پر تا وشوو
سر دي ټيټ نشو و چا ته زما مورې
د بدبينو تله سپکه را ته ښکاري
ځکه ته ځينې خفه يې لکه نورې
تا روزلي وو دوی ډير په زحمتونو
دې ناپاسو خپلې ميندی کاندي بورې
د هر چا سره تعبير د انسان بېل دئ
ته انسان ته د انسان په سترګه ګورې
ستا شرف او مقام دواړه وخت ثابت کړل
اوس نو ځکه هر جاهل ته سوک او زورې

نن د مارچ اتمه ورځ ده پرې یادیږي

د «بهین» د فخر وړ او سترګو تورې

**ماینز ـ جرمنی۲۰۰۲/۰۲/۰۷**

## نوی افغان

په ټول وجود کې زما
وینه په جوش راغلې
په جوش راغلې ده بیا
ځکه په هوش راغلې
آرام یې نشته دئ اوس
بیا په خروش راغلې

بې د هیواد په هوا آرامیدلئ نشي
بې د افغان په دوا کراریدلئ نشي

زما د وینو هیله
د خلکو آرام دئ
زما دزړه آرمان
د آزادی کام دئ
دغه آرمان دئ سچه
نه د تذویر دام دئ

زه د هیواد پتنگ یم خپل گلستان غواړم
زه یو نیکمرغه هوسا افغانستان غواړم

دغه وطن شو وېجاړ
د اجنټانو په لاس

دغه کورګۍ شو خراب

د مزدورانو په لاس

دغه قتلونه شول ټول

د اوباشانو په لاس

د دې خيرنو ځيرو بر بنديدل پکار

د دې خاينو د کړو رسوا کېدل دي پکار

په هره ورځ کړي دوی

پرله پسې جنګونه

په لاره کړي دي دوی

د تعجب وړ دودونه

د شريعت په نامه

پر خلکو کړي ظلمونه

دغو ظالمو ته مونږ نشو انسان وېلئ

دغو جاهلوته مونږ نشو افغان وېلئ

پدې مودرن نړۍ کې

دوی انسان بدلوي

د خپلو خوېندو پر ضد

د وخت جريان بدلوي

په ناسزا کارونو

ځان په شيطان بدلوي

له شیطانانو څخه څه د همت تمه ده

له نادانانو څخه څه د پیشرفت تمه ده

خلکو راځئ چې سره

پخپله ځان جوړ کړو

خپلو کې یو شو سره

ځانته جهان جوړ کړو

«بهین» په ډاګه وایي

نوی افغان جوړ کړو

هغه افغان چې پردی شوی نه وي

هغه افغان چې مری شوی نه وي

**ماینز ـ جرمنی ۱/۴/۲۰۱۴**

## پاکستانه وسوزې

د پامیر له لوړو څوکو د آسمایي له سختو تیګو

د بابا او هندوکش نه د سپین غر له ټیټو جګو

را رسیږي دا نارې

پا کستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې

پاکستانه ته لوګۍ شی چې لوګۍ دې زمونږ کور کړ

په ناحقه او ټګۍ دی ځوان او زوړ زمونږ په ګور کړ

د افغان بچیو لره دې په میراث دغه پیغور کړ

چې هیواد دې دال خورو په لوی لاس خراب په زور کړ

بیا وهې د اسلامیت نارې سورې

پاکستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې

پاکستانه تا آرام له مونږه واخیست ته هم کله آرامیږې

هغه ورځ ده را روانه چې ته هم به تباه کیږې

ځکه تا کړه بدي پیله په بدۍ به هم خښیږې

دغه حکم د تاریخ دئ او ته هم پرې ښه پوهیږې

په تا کړی ده دا پریکړه د افغان اولس جرګې

پاکستانه وسوزی، پاکستانه وسوزی، پاکستانه وسوزی

پاکستانه نه دې ضیا د حق اولاد* وو نه حمید د ګل* بچی

نه شرف ؤ په نواز* کې نه بوتو* هم کوم غمی

عبدالرحمن* دې هم خاېین وو فضل‌الرحمن * دی گوډاگی

د حسین قاضی* څه وایم هغه خپله ده مریی[1]

وایم لعنت پر دې ټولو «بهین» تل کړي دا ښیرې

پاکستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې، پاکستانه وسوزې

**ماینز ـ جرمنی ۲۲/۰۳/۲۰۱٤**

---

* ضیا جمهور رئیس، نواز شریف او بېنظیر بوتو صدراعظمان، حمید گل او اختر عبدالرحمن د آی، اس، آی آمران او قاضِي حسین او فضل‌الرحمن د پاکستان د مذهبي گوندونو رهبران.

---

[1] مری / غلام.

.۷٦

## د زړه خواله*

ملامتي افغان که نشته زما ياره

لږ څه غور شه دلته ما ته ای هوښياره

واوره ما ځينې قصه د دې ملت

چې څرګند شي درته اصل حکايت

دا چې وايم دا د زړه خواله زما ده

حقيقت ده نه طعنه او نه ګناه ده

له ډير درده يم په زړه کې پړسيدلی

د خپل ورور ليدلئ حال يم ودې ته رسولئ

افغانانو کې هرڅه شته مګر نشته اتفاق

اتفاق يې لا ته څه کړې، چې دوی ډير دې بې اتفاق

هم يې کشر ډير ضدي دی او پخپل سر

هم يې مشر تربګينت کړئ په سپين سر

عجيب خلک دي عجيبه غوندې خوی دي

عجيبه پکې کشران دي عجيبه غوندې لوی دي

څوک معصوم او څوک دي پړ پدې ملت کې

څوک ظالم او څوک مظلوم دې عدالت کې

---

* دا نظم ديوه بل محترم شاعرد شعر څخه په الهام اخيستو سره ترتيب شوی دی.

کوم قاضي ته مونږ د حق تله په لاس کړو

کوم انسان سره مونږ پیل په دغه بحث کړو

افغان نه اوري خبره د بل چا

دی پخپله هم قاضی دی هم مظلوم او هم باچا

دې ملت کې چارک نشته ټول یو "من" دي

ټول رئیس، ټول استادان، ټول ډګرمن دي

چا مسلک د خپل ژوندون جګړه ماري کړو

چا خپل ژوند ټول تیر په غلا او لوټماري کړو

یو د نورو په سلاحو ډیر نازیږي

دغه بل په بېګانه پیسو پړسیږي

افتخار یې د پردیو نوکري ده

بل څه نلري تحصیل چاکري ده

نه یې زړه کې صداقت شته نه وفا

نه یې سترګوکې کوم شرم نه حیا

تل د بل په بد وېلو نطاقي کړی

د خپل ورور لپاره جوړه لوی کوهي کړي

په دوستي کې دښمني او غداري کړي

په هر کار کې دی ټګي او خرابي کړي

«بهین» بیا پدغه وجه ډیر ځوریږي

چې یا ربه دغه خلک به آخر کله اصلاح کیږي

دا تر ځو به دوی یو بل ته په نشه وي
او ترڅو به دوی نړۍ ته تماشه وي
آخر ولې دا ملت داسې خراب شو
دا د کومې ښیرې زور و چې کباب شو
الهي ته د خپل ذات له برکته
دا ملت نه کاندې هیڅکله بې پته
ته یې لاره د خلاصون پیدا کړې خپله
کنه ورک به دا ملت شي تل تر تله

**ماینز ـ جرمنی ۲۷/۰۳/۲۰۱٤**

۷۷.

## خراب حال

ساقي راکړه شراب چې حال مې دی خراب
مطربه سر کړه رباب چې زړه مې دی کباب
نن شپه ده د خمارو پياله ده هسې تشه
لږ ډکه يې په ترخو کړه چې هير مې شي شراب
د ستورو تر ځلا چوپتيا ده هرې خواته
سپوږمۍ کړه سر را پورته، جلوه کړه په حساب
بريښنا دې د ښايست روښن کړل محفلونه
رڼا زما تياره کړه چې ودې شي ثواب
د حسن جادو وايي علاج د ستومانتيا ده
نقاب له مخه واخله چې ورک شي دا حجاب
شايد ستا پر خندا دردونه مداوا شي
يو ځل را ته مسکا شه چې ډير يم بيتاب
د تورو زلفو تار دې تړلئ په ځنځيريم
آزاد مې لدې بند کړه د وصل په ځواب
د تورو سترګو غيشو ويشتلئ په سينه يم
بل جام د ميو راکړه چې لاړ شمه په خواب
پر زړه مې پټۍ کيږده زخمونه هسې ډير دي

لږ لاس را باندې کش کړه چې کم مې‌شي عذاب

را تنګه، رانږدې شی د رحم په بهانه

خولګۍ دی را له راکړه «بهین» کړه بیا خراب

**ماینز ـ جرمنی ۱۶/۰۴/۲۰۱۴**

## ځان ځاني

دلته څوک د چا له حاله خبر ندی

معتبر له غریب، خواره خبر ندی

ځان ځاني ده هرڅوک ډوب خپلو خولو کې

څوک د چا له کارو باره خبرندی

دلته لوبه د ډالر او د کلدار ده

کلیوال له خپله ښاره خبر ندی

داسې بده بلا راغله پدې خاورې

چې اولاد له خپله پلاره خبر ندی

محبت او مینه ورک شول لدې ملکه

دا مجنون بیا له خپل یاره خبرندی

لیونتوب او بدماشي د ورځې مود شو

اوس سرباز له منصبداره خبر ندی

لوټماري او قاچاق هومره رواج وموند

چې کارگر بیا له کارداره خبر ندی

چالو ول په نشه‌یي توکو هم راغئ

پوډری نور له خماره خبر ندی

رشوتونه دي چې ورځ په ورځ زیاتیږي

بیا رئیس له ټیکه داره خبر ندی

هر چا ځان د یوې «انجو» پورې تړلئ

هیڅ وزیر له تحویلداره خبر ندی

د انسان ارزښت شو کم د افغان ملک کې

دکاندار له خریداره خبر ندی

دا د دین او د ایمان خبره پریږده

دلته څوک له «کردگاره» خبرندی

«بهین» هسې دئ خپه له بېگانه وو

وطندار له وطنداره خبر ندی

خدایه دا ملک دی په څه بلا اخته کړ؟

چې طبیب مو له بیماره خبر ندی

**ماینز ـ جرمنی ۵/۱۰/۲۰۱٤**

## د پلار په یاد

دا نظم ما د خپل مرحوم پلار د یاد په احترام د مخه ترتیب کړی وو، د یاد خبره دا ده هغه وخت (۱۹۸۲ کال) کی کله چی زما پلار وفات شو زه له هیواد څخه بهر په تحصیل بوخت وم نو د شعر په یوه بیت کی دا خبره هم راغلی ده، ستاسو پام ورته راړوم خدای وکړی چی د ستړیا سبب نشی.

۷۸. گرانه پلاره

یاد دې نه ځي له خاطره زما پلاره

ستا یادو کې لټومه خپله لاره

نه پوهیږم چې په کومه لاره ولاړ شم

دا خو ته وې چې ښوده دې را ته لاره

هر څه به زه هیر کړم پلاره ته مې هیریدای نشې

ذهن کې تل پاتې‌یې هیڅکله ته وتۍ نشې

که هر څومره شپې او ورځې شي سبا

ستا یادونو کې هم خوند شته هم ژړا

زړه د ستا په یاد قوت اخلي له غیبه

خو هیڅکله یې تسل نشي په دا

هر څه به زه هیر کړم پلاره ته مې هیریدای نشی

ذهن کې تل پاتې‌یې هیڅکله ته وتۍ نشې

له ډیر وخته مې په زړه کې دی آرمان

چې دا ولې ما کې نه وو دا توان

هغه وخت چې ته ژوندئ وې را ته ناست

ستا چوپړ کې ما قربان نکړ دا ځان

هرڅه به زه هیر کړم پلاره ته مې هیریدای نشې

ذهن کې تل پاتې یې هیڅکله ته وتئ نشې

کله غواړم چې ژوندئ وای را له بیا

پس له خدایه اتکا مې وای پرتا

دا د ژوند ناخوالې گردې وای هوارې

نه وای غم نه د بېلتون نه د دنیا

هرڅه به زه هیر کړم پلاره ته مې هیریدای نشې

ذهن کې تل پاتې یې هیڅکله ته وتئ نشې

دا افسوس دئ د کلونو راته پاتې

د وفات په وخت دی نه وم په هیواد کې

دا به ښه وای چې حاضر وای ستا حضورته

چې شامل وای ستا بخشش او ستا دعا کې

هر څه به زه هیر کړم پلاره ته مې هیریدای نشی

ذهن کې تل پاتې یې هیڅکله ته وتی نشی

اوس له ربه درته غواړم رحمت

آرام اوسې تل خوشحاله او با عزت

پاک الله دې په دوستانو کې حساب کړه

دا دعا ده د «بهین» په صداقت

هر څه به زه هیرکړم پلاره ته مې هیریدای نشې

ذهن کې تل پاتې یې هیڅکله ته وتې نشې

**ماینز ـ جرمنی ۲۸/۰۵/۲۰۱٤**

## دروغجن

له دروغجنو سره نشي همسفر

په هر چا باندې ښه ندی ډير باور

دروغجن دې په ارزانه خرڅوې

هغوې نلري پروا ستا د جوهر

دا ناکس د خپلو ګټو غلامان دي

بل څه نلري پر دوی باندې اثر

ټول ژوندون يې له فريبه څخه ډک دی

په دروغو غواړي ځان وښي بهتر

په ظاهر درنه ځاريږي په کراتو

په باطن کې سرطان دی د ځيګر

دا کسان د خپلو دروغو په نړۍ کې

لټوې ځان له ثواب تا له ضرر

که سل وار يې له ځمکې کړي راپورته

چې ولاړ شي بل انسان وې بل نظر

د بندي فکرو خاوند وي په ټول عمر

آزادي د ذهن نلري په سر

لدې خلکو څخه ځان ساتنه فرض ده

ځکه دوی دي هر شيبه تا له خطر

زمانه شوه عجیبه غوندې خرابه

بیگناه دې یو څوک ټیل وهي په شر

اوس «بهین» ته پر چا باندې یقین کړې

دلته ډیر دي غوړیدلي د تذویرو جوړ ټغر

**جرمنی ـ ماینز ۰۲/۰۶/۲۰۱۴**

## خپه یار

دلته خیال را نه څه غواړې

هلته ته په خوب ویده یې

دلته غم دی را روان دی

هلته ته هسې خپه یې

دلته اور مې په زړه بل دی

هلته ته ناسته کراره

دلته ویر دی د مړو هیلو

هلته ته ښکارې نشه یې

دلته زه درته ځوریږم

کباب کړئ مې ځیگر دی

هلته ته راته گواښیږې

ښکارې بیا چې په غوسه یې

دلته زه دې انتظار یم

ستا د فکر ټال کې زانگم

هلته ته غواړې ما هیر کړې

سم ولاړه په پلمه یې

دلته ما در ته د خپلو ښکلو

اوښکو هار جوړ کړی

هلته ته له ما نه تښتي

چې مې ونه ویني ښه یې

راشه، راشه دلته راشه

د «بهین» سره پخلا شه

که صادقه یې رښتینې

او که زړه کې بې کینه یې

که هر څومره ته ترخه شې

او سل واری هم خپه شې

بیا له ډېرو را نیږدې یې

او تر ټولو هم خوږه یې

**جرمنی ـ ماینز ۲۱/۰۵/۲۰۱٤**

**یوازیتوب**

تنهايي مې د وجود شوئ عادت دی

ما له عشقه لاس اخيستئ تر ابده

په ټولنو کې مې مه لټوه ياره

په ګوښو او ميخانو کړې زما پته

ما غوښتل چې په ګډه ژوند سبا شي

ولې نه وم زه خبر لدې رغبته

چې هر څوک د خپلې طمع په خاطر

لاره کندي و هغه بل ته تر قيامته

انسان غواړي پر انسان باندې ځان موړ کړي

ورور د ورور په وينه خيته کاندي غټه

بيا دعوا د ورورګلوي او اسلاميت کړي

او تر ټولو ځان عادل ګڼي بې حده

**کله دی د بشريت په نوم بشر خوري**

کله ځان په انساني جامه کړي ورته

کله بيا د نيکخواهی ناري وهينه

کله غږ د مظلومانو کړي اوچته

کله ځان د ناصحانو جمع کې شميري

کله خپله ځان رسوا کړي او بې پته

کله دروغ، کله چال کله دوکه کړي

کله وايي زه حامي يمه د حقه

نو دا ټول چې «بهين» ګوري احساس څه کړي

وايي څه يوازې ژوند بنه دی له ګډه

**جرمنی ـ ماينز ۰۹/۰٦/۲۰۱٤**

## د شهید هیله*

ما ځان درنه کربان کړ چې تاسی آرام اوسئ
راځئ چې مې زیارت ته تل لاس په دعا اوسئ

محتاج د بل څه نه یم دعاګاني مو کافي دي
خنداو کې مې یاد کړئ منکر د ژړا اوسئ

هیواد پسې خفه یم، آرمانونه شو نیمګړي
خدمت کې د هیواد هم نن او سبا اوسئ

نن زه در څخه لاړم، سبا نور هم را روان دي
دې لنډ غوندې ژوندون کې خوشحال په دنیا اوسئ

یوه ورځ به داسې راشي چې ګوتې به چیچې بیا
بهتره به وي دا چې له اوسه صلاح اوسئ

بدي کړئ نوره بنده، ورورې له سره پیل کړئ
چې نور درته حیران وې او تاسې رضا اوسئ

تر څو به چړي ګرځي د نورو مدرسو کې
ای خلکو لږ را ویښ شئ خپل ځان له ملا اوسئ

که غواړي چې «بهین» په قبر کې آرام وې
خپلواک ساتئ هیواد پر مخ د رڼا اوسئ

**ماینز ـ جرمنی ۰۲/۱۰/۲۰۱۴**

* این سروده به احترام بیت زیرین مرحوم اسماعیل بلخی شاعر نام‌آور کشور ترتیب یافته است:
«ماجان به فنا دادیم تا زنده شما باشید      بر خاک مزاری ما دایم به دعا باشید»

## د زړه کتاب

که د زړه کتاب مې وسپړې په ځير
بيا به پوه شې چې زه نه يم له تا تير
هر يو ياد دې ما کتاب کې دی راوړئ
په غټ تورو مې ليکلئ ستا نوم ډير

هره کرښه د کتاب کې ستا د مينې ياد راغلئ
هره پاڼه د کتاب کې ستا انځور دی ما را کښلئ
ستا د حسن ګل د هر فصل زينت دئ
هر برخه د کتاب پر نامه دې ښکاري ښکلئ

دې کتاب د ليک لپاره زه يو عمر مسافر يم
شپه او ورځ نده معلومه پخپل کور کې مهاجر يم
اوس نو راشه، د کتاب مضمون کړه بشپړ د زړه سره
«بهين» مه پريږده يوازې، زه ژوندی ستا په خاطر ايم

**ماينز ـ جرمنی ۲۰۱۵/۰۱/ ۲۷**

## د انسان دښمن

که مې سر را ځینې لاړ شي حقیقت کې
که په شمیر د ګنهګارو شم قیامت کې
وایم دې دنیا کې ښه کړه، هغه پریږده
ځان شریک کړه د همدې دنیا جنت کې

دوزخیان دي، دې دنیا کې فراوان
مرداري کې شپه او ورځ دي سرګردان
لوټول او وژل هسې د دوی کار دی
د ابلیس په شانې ګرځي بې ایمان

جهادي دی که طالب، یا داعش که خراسان
دا په اصل کې دښمن دی د انسان
شیطان ځکه د «ملک» له منصب ولوید
سر یې ټیټ نکړ مقام ته دانسان

نن شیطان د دي وحشیانو شاګردي کړي
ځناور هم د دوی کړو ته حیراني کړي
د مذهب په نامه خوري د انسان غوښې
د بشر وینه څښي او پرې مستي کړي

الهي ته دا اوباش کاندې انسان

يا يې ورک کړه يا يې سم کړه بندهګان

«بهين» دعا کړي چې لدي بده ميکروبه

يا نرئ کړه په امان، يا قوي کړه مظلومان

**ماينز ـ جرمنى ۲۰۱۴/ ۱/۹**

## برقي بلا

چې مې بیا نه وې لیدلۍ دا به ښه وای
چې «فیسبوک» ته نه وې تللۍ دا به ښه وای
چې لدې برقي بلا څخه وای لیرې
چې تا زه او ما ته نه وای لیدلۍ دا به ښه وای
اوس چې وشو بیا دې هجر کې ځوریږم

بیا ستا مینه را ژوندی شوه زما تن کې
بیا مې اور ولګیده په ټول بدن کې
بیا آرام را څیني لاړه پریشاني شوه
بیا خوځښت راغی د مړو هیلو چمن کې
اوس چې ګرزم له خپل ځان سره ګړیږم

دا منم چې ته لا اوس هم په غصه یې
خوا دې بده ده له ما څیني خپه یې
خو د ما له مجبوری هم ځان پوه کړه
که په عمر یې وړه ، له عقله خو پخه یې
باور وکړه چې په درد دې ډیر دردیږم

اوس که غواړی لیونی شم نو مې پرېږده
یا په عقل کې کمکې شم نو مې پرېږده
یا خو دا چې د وصال په چم مې بند کړه
چې یو ځلې بیا ژوندی شم بیا مې پرېږده
که دا نشي پاک په مینه دې سوزېږم

لږ مې وباسه لدې خواره حالته
دا پوهېږم درته پړ یم، ملامته
خو د وخت له جبره ته هم انکار نشې
«بهین» دی ستا پوروړی تر قیامته
که بخت راغی ستا چوپړ کې به درېږم

**ماینز ـ جرمنی ۲۰/۹/۲۰۱۴**

## د کلي شیطان

دوه افغان وو په یوه لار سره روان
دواړو ځان ګڼه د خدای ښه بندهګان
یو د دین خبرې کړې بل د ایمان
دواړو خیر غوښته یوازې د خپل ځان
په ورو، ورو خبره یاده شوه د حج
دواړو نیت وکړ چې حج ته شي روان
په کعبه کې دوی د حج شرطونه زده کړل
یو شرط دا وو چې پر اوو تیږو به ولي دوی شیطان
یو حاجي پر شیطان دری تیږې ګذار کړې
څلور نوریې کړې له ځان سره پټهان
چا ترې وپوښته سبب د دغه کار
ده وې: پر هغو ولم د خپل کلي شیطان
اوس زمونږ خاوره کې هم ابلیسان ډیر دي
غواړم هلته پرې پوره کړم خپل ارمان
لدې وجې «بهین» دعا کړي پاکه ربه
د افغان له ملک ورک کړه ټول شیطان

**ماینز ـ جرمنی ۱۶/۱۱/۲۰۱۴**

.۷۹

## ډکه خوله

چې دې خوله وينم ډکه له خندا

هسې زما په شونډو هم راشي مسکا

ډير ربړونه مې په ژوند کې دي ګاللي

خو هيڅکله هيره نشوه ستا سودا

هر څوک ځان لره جلا دنياګۍ غواړي

زما دنيا ده ستا د سترګو تماشا

غواړم لږ عمر سر ستا په سينو کيږدم

څو شيبې کړمه ځان ورک له دې دنيا

تر هغې چې خلک پيدا زما څرک کړي

او په مينه دې بد نام شم او رسوا

تمه دا ده چې خپل کام کړمه تر لاسه

سرکې شونډې دی په غابښ کړمه بيا، بيا

څو رقيب شي له خپل کاره پښيمانه

او لاس واخلي د پرديو له ليلې

غليمان او چوغلان هم پدې پوه شي

چې د خلکو ځورونه ده ګنا ه

پريږدی دوه مينې پخپلو کې چې څه کړي

د «بهين» په شان ګوښه کړی ځان يو خوا

**ماينز ـ جرمنی ١٤/٨/٢٠١٤**

# منطق

هر منطق لری له ځان سره خبر
ښه وینا پر هر انسان کوي اثر
کوم گفتار چې استدلال ځیني خالي وي
تش یو پوف دی چې په درد نخوري د سر
خلک به ناست وې درته گوري به په زغرده
خو افکار یې بله خوا وهي چکر
که ته غواړې جامعه کې عزت ومومي
ځان سمبال کړه د منطق په ښه جوهر
منطقي انسان هر چا ته وې منلی
بې منطقه کسان ځان له دی خطر
دا منم چې نن هیواد کې منطق زور دی
خو د زور منطق پخپله دی لوې شر
مرگ او ژوبله نور حلال د ستونزو ندي
دا منطق دی چې منلی دی بشر
ډیر، منطق تعبیروې په جلا ډول
ښه منطق له عقلانیت ندی بهر
راشه واوره د «بهین» پر خبر پوه شه
ټوپک پریږده د منطق جوړ کړه سنگر

**ماینز ـ جرمنی ـ ۱۳/۱/۲۰۱۵**

## د مړو ننداري

هر قانون کې فرد تابع د جماعت دی
وايي اجماع کې هم ثواب هم برکت دی
کوم کس چې پر ځان نه مني دا اصل
شرمنده هم په دنيا هم آخرت دی

هره ورځ زمونږ کورو کې جنازې دي
هره ورځ دلته د مړو ننداري دي

زمونږ خاوره کې پيدا شو عجيبه ډول مسلمان
چې نه خيال ساتي د خدای نه د قران
دا په ژبه درته وايي کلمه د «محمد»
ولې اصل کې شيطان دی په ايمان

هره ورځ مونږه په وير يو
هره ورځ مونږه دلگير يو

ځو اوباشو ښځې کړې دي منگولې پر دې خاورې
لګوي د هر افغان پر مخ شوکارې
نه پوهيږم دا له کوم نسله پيدا دی
په وحشت کې يې نړۍ نه ښيې سارې

هره ورځ زمونږ کورو کې جنازې دی
هره ورځ دلته د مړو ننداري دی

ځو چې دا ملک او جهان وي
ځو چې دا جاهل وحشيان وي
خوار، غريب به تل ځوريږي
تباهي به د افغان وي

هره ورځ به مونږ په وير يو
هره ورځ به مونږ دلگير يو

راشه يو موټی، يو ځان شو وطنداره
يو له بل ځيني کربان شو وطنداره
په ربنتيني او صداقت سره لاس يو کړو
ستر ملت او «يو» «افغان» شو وطنداره

هره ورځ زمونږ کورو کې جنازې دي
هره ورځ دلته د مړو ننداري دي

په غمونو دې غميږم ای افغانه
په دردونو دې درديږم ای افغانه
ليرې اوسې هم له درده هم له غمه
په وار وار درته ځوريږم ای افغانه

هره ورځ زمونږ کورو کې جنازې دي
هره ورځ دلته د مړو ننداري دي

ای زما دسترگو توره ای افغانه
لږ په مينه ما ته گوره ای افغانه

حسادت او کینه پرېږده خدای لپاره

دا له «بهین» واوره وروره ای افغانه

هره ورځ زمونږ کورو کې جنازې دي

هره ورځ دلته د مړو ننداره دي

**ماینز ـ جرمنی ۹/۱۲/۲۰۱۴**

## یوه پوښتنه

بیا مې یارته څه ویلی نشم زه
دا خپل حال ترې پټولې نشم زه
هغه وخت یې چې د شوندو رپا ګورم
په ایمان چې ځان ساتلی نشم زه
وایه څه وکړمه زه؟
که یې نوم اخلمه ژبه مې سوځیږې
که خوله پټه ساتم تن مې ټول پرسیږي
که ترې سترګې واړوم ممکن نده
دغه سترګې بلې خواته وغړیږي
وایه څه وکړمه زه؟
ځینې وایي حرکت کې برکت دی
خپله پریکړه لومړی شرط د موفقیت دی
که د زړه حال ورته ووایم په ډاګه
آیا دا کوم ناجایزه حرکت دی؟
وایه څه وکړمه زه ؟؟؟

**ماینز ـ جرمنی ۲۰۱۴/ ۱۲/۱۲**

## کاشکي

کاشکي نه وای د ژوند لاره کې اغزي
کاشکي ژوند وای لدې ستونزو نه خالي
کاشکي چا د چا په کار کې غرض نکړی
هر انسان وای له خپل ژوند ځینې راضي
کاشکي ظلم او ظالم نه وای په نړۍ کې
بې وس نکړي، زرورو ته زاري
کاشکي دا د ژوند ناخوالې په نوبت وای
چې هر چا ته رسیدلی څه خندا څه خوشحالی
کاشکي درد وای مشترک د ټولو زړونو
چې چا نکړی د چا زړه سره بازي
کاشکي هر انسان د بل پر حق قانع وای
نه چې غلا کړي له هغه ځینې روزي
کاشکي هر چا د قانون عزت ساتلی
نه خیانت وای، نه فریب نه بدماشي
کاشکي دا د ژوند ډیوه وای لړ روښانه
پر تیارو مو را خوره وای روښنایي
کاشکي مینه، محبت او صداقت وای
یو د بل سره دوستي او چلند وای انساني

خدایه دا تولې «کاشکي» مو ته رښتیا کړې

چې ویده مو شي راوېښ او وېښان شي په مستي

زه «بهین» به په ژوندون هله خوشحال یم

چې هیواد مې شي آزاد، افغانان شي بیا آشتي

**ماینز- جرمنی ۱۳/۲/۲۰۱۵**

**رسوايي**

په ناڅاپه د افغان ولس په سر
د نامردو لخوا راغی یو محشر
څوک یې مړه، څوک یې بندیان، څوک یې فرار کړل
واړه خلک په دغه باب شوو در په در
د چا کور ترینه تالا شو د چا مال
د چا ځمکه ترې شوه پاتې د چا زر
چا زامن له لاسه ورکړل، چا میړونه
چا منصب ورته کړ خوشی، چا موټر
واره ټول ملت په غم شو ماتم راغی
کوم ماتم چې پر دوی راغی له بهر
د پردیو د ټانکو په زور تحمیل شو
شاو خوا ته یې ولاړ هلیکوپټر
د راکټو او ستینګرو په څارنه
هیله دا وه چې پرې خلک وکړي باور
مګر تبنت د رسوایي ژر رسوا شو
هغه وخت چې پر دوی پریوته نظر
خلک پرې پوه شول چې دا هغه لیونیان دي
چې نه عقل لری، نه فکر په سر

د اسلام نارې وهې مگر په اصل

دا د دوی عمل به ونکړي کافر

دوی غوښتل چې پر اسلام تجارت وکړي

ولې خلکو ته بربنډ شول لکه لمر

دا چې وايم نه دروغ دي او نه بهتان

حقايق دي ټول عالم دی پرې خبر

کوم چې نن ځان مجاهد بولي او شر کړي

دا څو غله دي، نه جهاد ځينې خبر

جهاد دا دئ چې د خلکو مال ترې غلا کړه

او يا ځان کړه د پرديو ښه نوکر

د پرديو په لمڅون هيواد ويجار کړه

چې تر لاسه کړې کلدار يا څه ډالر

جهاد دا دی چې د خلکو سپکاوي کړه

هم په کور هم په کوڅه هم په دفتر

د خپل ورور ناموس ته وگوره په بده

او په زور او جبريې بوځه له بستر

دغه کړو ته مونږ جهاد ويلی نشو

دا د شوم پلان عمل دی په هنر

دا پلان په افغانانو سرته رسي

ولې طرحه د «حمید» ده او داختر»*

افغانان دي په دې لومه کې نښتي

او هم دوی دی یو بل لره خطر

تر هغو به دا جګړه لري دوام

چې دوی وخوري یو د بل غوښې او سر

دا چې دوی واهه پر نورو مهر دکفر

نن پخپله یو پر بل شولو شک بر

اوس فتوا دي پر هر لوري ورکړل کیږي

خلک حیران دي چې پر چا وکړي باور

نه شریعت مد نظر دی نه احکام دي د اسلام

ځان ځاني ده هر څوک ځان غواړي بهتر

چاپلوسان یې بیا په غرب کې مداهي کړی

شیي ځان ورته نږدې او همسنګر

مګر کله چې هیواد ته بیا د تلو خبره راشي

بیا نو سل پلمې کړی وړاندې په یو سر

یو وایي زما د اولادو تعلیم پاتېږي

بل بیا ښځو ته بانه کړي د پوهنې د اغوستو او د چادر

وایي زمونږ فامیل په غرب کې دی لوی شوی

---

* جنرال حمید ګل او جنرال اختر پاکستان داستخباراتو پخوانی رئیسان

مونږ لرو جلا کلتور او بېل تږغر

دا خو گران دی چې اوس مونږ وشاته ولاړ شو

د ملا او د طالبو د ویناو په اثر

اوس نړۍ ده مخکې تللی او مونږ هم

باید ځان کړو د دی عصر سره جوخت او برابر

ولې بیا چې د مفاد خبره راشي

نو فوري دوی مجاهد شي او سرونه کړي ببر

خو رښتیا خبره دا ده چې دا ټول

نه په فکر د هیواد دي او نکړي دغه سفر

اصلیت خو اوس د هر چا را معلوم شو

او ماهیت هم دهر چا او هم جوهر

اوس نو دا خبره جوته شوه اولس ته

چې ټولنه کي هم ښه شته هم بدتر

څوک جهاد د خدای د حق لپاره غواړي

چا جهاد وسیله کړی چې را مېنځته کړي کوم شر

څوک هیواد غواړي، هیواد پسې روان دي

څوک د خاورې له حق ځان کړي بېخبر

څوک هیواد په څو روپیو خرڅوینه

چا ته موټی خپله خاوره ده گوهر

«بهین» تل دی لوې خدای ته پډې تمه

چې یا ربه ته دا خلک په سمه لار کړې برابر

الهي ته اتفاق ورکړې دې قوم ته

زړونه یې پاک کړې له کینې او له ضرر

د خائن او د ظالم لاسونه لنډ کړې

د افغان له پاکې خاورې، شین آسمان او ښکلی لمر

**ماینز- جرمنی ۲۱/۱/۲۰۱۵**

## د خوب بیا ن

هره شپه مې په وار وار خوب ته راځي

داسې ښکاري چې بیا ، بیا زړه ته راځې

ما د صبر تیږه ایښې پر ځګر وه

اوس چې وینم هر ګړی یاد ته راځي

بېګاه شپه مې نیت و، حال درته بیا ن کړم

ډار په دې شوم چې بیا خوب ته نه راځې

زړه مې ډیر دی دردیدلی له بېلتونه

خوښ پدې یم چې اوس خوب ته خو راځې

وايي خوب له بېغمي راځي انسان له

«بهین» خوب کې هم غمجن وې، چې بیا ځې

راشه دواړه په دې عهد سره صلاح شو

چې وېښتیا کې نه راځې، نو بیا خوب ته به راځې

**ماینز- جرمنی ۲۷/۲/۲۰۱۵**

## د خرو شهادتنامې *

په یوه کلي کې یو خان و زورور
هیڅ انسان یې له ځان نه منه بهتر
ډیر مغرور و پخپل ژوند او پخپل کار
ټول جایداد یې و له غلا او له قمار
نه تابع و د قانون او نې پروا وه د ولس
درلودل یې څو «لوچک» او څو مفلس
خان لرلو یو زوې ډیر نازولی
د خپل ځان په شاني ځانته و روزلی
نه یې مزه وه په سبق او په مکتب کې
نه یې ادب ساته د ژوند په نزاکت کې
په آزموینو کې د پلار په زور کامیاب و
امتیازات یې پدې هکله بې حساب و
هم ښوونکي ترې په عذاب و او هم شاګرد
هم د کلي خلک خپه و ځنې ګرد
یوه ورځ په ښونځی کې شاګردان
را ټول شوې وو، پس له امتحان
انتظار و چې تر لاسه کړي پارچې

* دا هم یوه بله فولکلوریک طنزي کیسه ده چې ما په نظم کې راوړې او تاسو ته وړاندې کوم. هیله ده چې لږ ورته ځیر شی.

ځان آگاه کړي د خپل زيار له نتيجې

د خان زوې راغی ښونځی ته پر آس سپور

سپور روان شو د آمر دفتر په لور

غږ يې وکړ: ای استاده زما د زيار شهادتنامه

ما له راوړه که مې اورې ته ناره

استاد راغی ورته يې وکتل په ځير

ځو شيبې ورځنې هرڅه شولو هير

ورته ووې: اې زما د سترګو توره

مبارک دی شه بری، خو په غور ما ته ګوره

دا منم چې د ليوه بچې ليوه غوندې لوېږي

لړمانو نه لړم، له مارانو نه ماران را پيدا کيږي

خو د انسان جوهر کاغذ نه، پر ادب دی

که ادب در سره نه وي لوې غضب دی

خانزاده ووې: ای زما ګرانه استاده

هسې «اوتی، بوتي» مه وايه بې حسابه

لږ احتياط ساته په وخت کې د وينا

داسې نه چې زه خپه شمه له تا

زما پلار خو در معلوم دی په حساب

په ناحقه پر ځان مه اخله عذاب

اوس دې ما له تصديق راکړه جانانه

آس مې غواړي له تا هم شهادتنامه

چې استاد د شاگرد واوريده گفتار

پدې ډول يې ورته وکانده اقرار:

نن د خرو وار دی پر خرو وېشو تصديق

بله ورځ دې بيا ته را وله رفيق

**ماينز ـ جرمنی ۱۳/۳/۲۰۱۵**

## د پادشاه خر

اوریدلې مې کیسه ده ډیر پخوا
چې عراق باندې حاکم و یو پادشاه
په شوکت او عظمت کې و ډیر ستر
په رعیت و مهربانه، نه مضر
خلک خوشحال و له پادشاه سره په کار
خو پادشاه نه و راضي له خپل روزگار
پر پادشاه باندې و گران، یو تکړه خر
پادشاه تل وهه له خره سره چکر
ده مدام د خر په غوږ کې څه ویلې
خو د خر له خولې یې هیڅ نه اوریدلې
یوه ورځ ورته دا فکر شو پیدا
ښه به دا وي چې زما خر شي هم گویا
سمدلاسه یې ملگرى کړل احضار
غونډه یې جوړه کړه په صحن د دربار
بیا پادشاه ووې چې اى زما یارانو
زما خر دى استثناء له چارپایانو
سل کماله ورسره دي خو افسوس
نه څه وایي او نکړي له ما تپوس
که له تاسونه پیدا شي څوک چې زما

دغه خر کړي په گفتار نن یا سبا

زه به خپله دغه ټوله پادشاهي

له هغه سره کړم سمه نیمايي

خو که څوک راسره وکاندي دوکه

هغه دم به یې سر غوڅ شي له تنه

د دربار له جمع ودرید یو هوښیار

وې، زه حاضریم چې تر سره کړمه دا کار

زه لرم پدغه هکله دوه شرطونه

که ته هو کړی درته وایم خپل رازونه

پادشاه هو کړه، ویلی شرط دې کړه افشا

چې هم زه او هم دربار ترې شي آگاه

هوښیار ووې: صدقه شم په سل واری زه له تا

ای زما د سترگو توره ستر پادشاه

لومړی:غواړم له تا لس کاله مهلت

تر څو خرته زده کړه ورکړم په فرصت

دویم: دا چې په هره میاشت د هر یو کال

راکوه ماله د دیرش طلا و مال

پادشاه ووې:ځه منظور مې دې شرطونه

خو که دروغ ووایې سر دې غوڅومه

پدې ډول دواړو وکړه موافقه

چې کارونه به کوي بلا وقفه

لدې وروسته وپوښتل چا له هوښياره

هسې ولې ځان دې وژنې پدې لاره؟

ته پوهيږې چې خر نه کاندي گفتار

سر دې ولې ځروې هسې په دار؟

هوښيار ووې: ای زما عزيزه ياره

زه مهلت لرم د لس کالو لپاره

تر هغو به زه خپل عيش او خپل عشرت کړم

هم پر ځان او هم پرتا به مرحمت کړم

تر لس کاله به خوند واخلم له دنيا

يا به زه مړ يم، يا خر او يا پادشاه

**ماينز – جرمنی ۲۳/۲/۲۰۱۵**

## خوږه مینه

مینه څه ده د ژوندون یو صفحه ده
یا د ستا یا زما د ژوند کیسه ده
کله خوښ کله خپه وي خلک په مینه
مګر بیا هم پرهر چا باندې خوږه ده
نه یې پیل چا له معلوم وي نه انجام
یو وخت ګرمه، بل وخت لږ غوندې سړه ده
څوک په یار څوک پر دنیا باندې مین وي
ما ته مینه د انسان، د ژوند تحفه ده
خلیفه د خدای انسان دی په نړۍ کې
ځکه مینه یې شیرینه او سچه ده
د انسان او انسانیت مینان واړه
نه یو زړه، بلکې زړونو کې دیره ده
خو نن افغان له افغانانو دي په تېښته
مینه ورکه، کرکه ډیرو ته پیشه ده
دا د مینې ځای نیولی ټول نفرت دی
هر افغان و بل افغان ته په غصه ده
زه «بهین» اوس په لټون د محبت یم
بې له مینې لدې ژونده څه فایده ده

**ماینز ـ جرمنی ۱۷/۵/۲۰۱۵**

## د غم بلا

په خوله مې مهر د سکوت مه وهه نور
زه تا له ډيرې افسانې لرمه
تن مې ترلی ستا د ذلفو په تار
په سرکې شور او ترانې لرمه
په هيڅ رقم دې هيرولی نشم
له تا نه ډيرې خاطرې لرمه
نن بيا خمار د يوې پيالې راغلی
د مېو شونډو دې نشې لرمه
وايي شراب د غم بلا ورکه وي
زه د غمونو کجاوې لرمه
لږ مې گيلاس پر ترخو ډک کړه ساقي
د ظالم يار ځنې گيلې لرمه
نه مې پردی گڼي نه خپل راته وايي
له داسې دوسته څه هيلې لرمه؟
« بهين» له حاله څوک خبر دي خلکو
په زړه سکروټې او شعلې لرمه

**ماينز ـ جرمنی ۲۲/۴/۲۰۱۵**

## عقده یی لیونیان

د زړه سوي سره آشنا یم، نن بل شان مې ځوروي

له هیواده یم چې لیرې، ټول جهان مې ځوروي

نلرم دلته محرم څوک چې د زړه تسل پرې وشي

لکه شمع ویلی کیږم ، دا مکان مې ځوروي

د امید په تمه ناست یم چې ارمان به مې پوره شي

خو ارمان هم ځنډنی شو، اوس خپل ځان مې ځوروي

د حسرت خوبونه وینم هسې شپه او ورځ رنځیږم

بې سفره عمر مې لنډ شو دا کاروان مې ځوروي

زمانه شوله بدله خپل یاران را ته دښمن شو

له پردو څخه ګیله نشته خپل افغان مې ځوروي

نه پوهیږم چې زه څوک یم په کوم جرم سزا وینم

هوښیاران خو لا ته پریږده، لیونیان مې ځوروي

کله ویښ کله ویده یم، برخلیک مې نامعلوم دی

دا د ژوند قفس کې ګیر یم دا زندان مې ځوروي

له هر چا سره چې ښه کړې پر څپیړې دې ځواب کړي

دا فریب د زمانې او دغه مکر د انسان مې ځوروي

اخلاقي اصول هیر شوي، لوچکي شوې رواج ده

دا رنګ رنګه پیدا شوي لوچکان مې ځوروي

د هغه چې تر پرونه، نه شرف وو نه آبرو

نن ادعا د سرخ رويي کړی دا وجدان مې ځوروي

چې نه خوله پټه نيوی شي، نه يې خبرو که منطق وي

د دې داسې بد زبانو پوچ بيان مې ځوروي

چې نظر يې د عقدې او حسادت پر خط ولاړ وي

دغه شانې تنگ نظره عقديان مې ځوروي

«بهين» نه غواړي بربنډ د چا ځيرې او چا رازونه

خو د ځينو سپين سترگي او سست ايمان مې ځوروي

**ماينز ـ جرمنی ۲۰۱۵/۶/ ۲۹**

## د قام ناحقه ويندوى

که هر څه دې هيرومه نه هيرېږې
پدې بد حالت مې ته هم بنه پوهيږې
عاقبت دى د عمل څه دى پوهيږې؟
مکړه ياره چې آخر پښيمانيږې

ندې زړه کې کوم احساس شته د وفا
ندې خولې کې کوم اثر شته د رښتيا
نه هغه يې چې پيژندلې مې پخوا
د دليل پر ځاى چټيات را ته ګړيږې

ستا وعده وه له يارانو سره دا
چې آرمان به مو پوره کړم په رضا
نن چې ګورم هرڅه هير دي ټول له ستا
پام دې ساته چې يوازې پاتې کيږې

يو وخت ته وې په ټولنه کې لوې سيال
ډار دې نه وو له اوباش او له ارذال
اوس دې کړه را ته ګرد ښکاري د شغال
د پردو په نوکرۍ کې ډير نازيږې

له اغیار سره خندا ما سره جنګ کړي
له غلیم سره صلاح له ما څخه ننګ کړي
په فریب کې ګټه نشته هسې رنګ کړي
صداقت کې ته هیڅکله نه شرمیږې

ستا حکمت او عقل وقف شو شیطنت کې
مدام خوښ یې د قومو تر مینځ نفرت کې
خباثت دې عادت شوې، هڅه کړې په شرارت کې
پدې پوه شه هغه اور چې بلوې پکې سوځیږې

د «بهین» خبره واوره، خپل ملت سره یو ځای شه
په ناحقه د قومو ویندویي مکړه، ښه سړی* شه
د ګیدړو لوبې پریږده په رښتیني بیا زمری شه
تعصب او بدبینی کې آخر خپله تباه کیږي

**ماینز ـ جرمنی ۲۹/۸/۲۰۱۵**

* ښه سړی (ښه انسان).

## د کلي نجلۍ

هغه کلي کې نجلۍ وه ډېره ښکلې

ما به هر کله پېټ، پېټ ورته کتلې

قد يې جګ وو لکه ونه د چنار

د شونډانو سرخي وه لکه انار

تورې زلفې يې پر مخ خورې ورې وې

د ښايست شغلې يې هره خوا خورې وې

ملا يې وه ډېره باريکه لکه لښته

خو مغروره او پر زړه وه لړ څه سخته

زړه يې وړی وو زما ځينې يو دم

د وصال په تمه يې ناست ومه هردم

د ښو غيشی يې ښخ زما پر زړه وو

خو غوړونه يې زما پر غږ کاڼه وو

يوه ورځ مې حال د زړه ورته بيا ن کړ

په خندا مې دا خپل نيت ورته عيان کړ

د ګلاب غنچې په څېر خوله په مسکا شوه

زما د نيت په اوريدو بله هوا شوه

وې: څه آشنا بې ځايه مه ګړيږه

پر عبث خبرو مه راته غړيږه

نه کلتور مو سره يو دی نه د ستور

نه په لاره سره تلی شو پر یو لور

ته بډای، زه یم بې وسه

ته ښاغلی، زه بېکسه

ته ښاري، زه یم د کلي

ته خانزاده ، مونږ یو رټلي

پیسه دار کله رټلي شي منلي

توانگر کله بېوس خپل سیال بللي

ځه ، لومړی ځان زمونږ کلتور سره عیار کړه

بیا خبرې د وصال او د ریبار کړه

دا پوهیږم چې نن ته غواړې ما ډیر

خو سبا به هر څه وي در ځنې هیر

اول ذهن دې آزاد او انساني کړه

وروسته بیا د واده فکر او ریباري کړه

«بهین» وایي تر څو سترگې غړوې پردې جهان

د انسان په سترگه گوره هر انسان

**ماینز ـ جرمنی ۹/۷/۲۰۱۵**

## زمونږ کشتۍ

ته چې ځې غم دې پاتې کیږي دلته

ستا په غمونو ډیر ځوریږي دلته

ستا د ښایسته سترګو د یاد نښانه

زما په زړه کې پاتې کیږي دلته

ستا د پښو آواز به زما پر غوږو

د نرم باد په څیر لګیږي دلته

یاد دې د سپینې خولې چې راشي هسې

د زړه رګونه مې سستیږي دلته

ډیر انځورونه دې لرم د خندا

خو د هیلو ځلۍ مې نړیږي دلته

په تګ دې نه پوهیږم څه به وشي

په غیر له تا به څه تیریږي دلته

ته چې ځې، ځه پر مخ دې سره ګلونه

زمونږ هیواد هسې تشیږي دلته

ټول هغه څوک چې د تحصیل خاوند وو

له ملکه تښتي چې مړه کیږي دلته

د څو خاین بچو له بدو کړو څخه

له ډیره وخته اور بلیږي دلته

دلته جګړه د ابلیسانو ده پیل

بیگناه خلک پکې سوزیږي دلته

دلته د سرو وینو بهیر روان دی

افغان ولس پکې ډوبیږي دلته

خدایه! خدایه د دې ملت گناه په څه ده؟

یتیم او کونډې یې ربړیږي دلته

آسمان دی جگ او ځمکه سخته ده بیا

آیا آواز مو در رسیږي دلته؟

د نوح طوفان دې بیا نازل کړو پرمونږ

اوس مو کشتۍ پکې غرقیږي دلته

د خلاصون لاره یې نژدې نه ښکاري

«بهین» په هره ورځ خوریږي دلته

**ماینز- جرمنی ۱۹/۹/۲۰۱۵**

## یو بربند نظم

۸۰. د یار شوندې

د یار شوندې مې یادیږي نن سبا
خلکو وکړئ له اخلاصه دا دعا
چې دیار زړه مې خالي له هر غصې شي
او په زړه کې یې پیدا شي بیا سخا

د یار شونډو کې مې بیل ډول طراوت دی
دا سرخي یې پاک د مینی حلاوت دی
د خوږ خوند کیسه یې څه را باندې وایي
وایم قسم دی چې مزه یې د شربت دی

ما په وار وار دا شونډان دي آزمویلې
په کراتو مې په خوله کې دي زبېښلې
وروستی ځلې یې خوند بېل، خمار یې بېل وو
تا به وې، چې نبات دی په شرابو کې لړلی

اوس د دی شونډو آرمان کومه بیا
خو یار هسې په غصه دی سخت پر ما

زه «بهین» خبر له اصلې کېسې نه یم
نه پوهیږم څه ګناه ده، څه خطا ؟

الهي د خوبان زړه ته خفه نکړې
که خفه شي، خو کینه ورته ورنکړې
د خوبانو زړونه هسې هم حساس وي
پدې زړونو کې کېنې ته ځای ورنکړې

**ماينز ـ جرمنی ۱۰/۸/۲۰۱۵**

## د خلاصون لاره

دا حکومت خو دو سره شو وطنداره
پارلمان بوخت پر جگړه شو وطنداره
ځوانان تښتي لدې ملک په زرهاو
دا داعش هم لوی خطر شو وطنداره
نو راته مکړه د نصیحت او پند خبرې
د خلاصون لار را وښیې ملګری

هره ورځ جنګ او جګړې دي پارلمان کې
رنګارنګه فیصلې دي پارلمان کې
نه یوازې یې ډیر کړه د قانون ضد دي
واړه چارې معاملې دي پارلمان کې
راته مکړه د نصیحت او پند خبرې
د خلاصون لار راوښیې ملګری

دا وکیلان ندي لیوان دي په رښتیا
په چل ول کې استادان دی په رښتیا
د ولس ستونزیې واړه هیرې کړې
پر خپل ګټو سرګردان دي په رښتیا

راته مکړه د نصیحت او پند خبرې
د خلاصون لاره راوښیې ملګری

چې بد فعله او بد کردار شي هر انسان
ورته وایه چې لعنت پر تا انسان
چې وکیل* د پارلمان د غداري کړي
د عوامو پر خطا مه شه حیران
را ته مکړه د نصیحت او پند خبرې
د خلاصون لاره راوښیې ملګری

که امید څوک لدې حکومت او دی شورا کړي
هسې عمر خپل عبث تیر په خطا کړي
غله د شپې د غلا دمال پسی روان وي
دوی په ورځ د خلکو سر و مال تالا کړي
راته مکړه د نصیحت او پند خبرې
د خلاصون لاره راوښیې ملګری

**ماینز ـ جرمنی۲۰۱۵/۱۰/۳۱**

---

* شریف او وطنپرست وکیلان او د حکومت کارکونکي پدې ډلې کې نه راځی.

## صنوبر*

ببګاه شپه مې په خوب راغله صنوبر

په ژړا یې راته ویلی دا خبر

چې طالب وحشي بیا نیت د سنګسار کړي

دا ځل ما ولي پر کاڼو او ډبر

نه حکومت زما تپوس کړي، نه ملت

نه هم داسې څوک زه وینم چې ور څیرې کړم تتر

که انسان د خدای پیدا وي او بنده

بیا سنګسار څنګه روا دی پر بشر؟

زه «بهین»ورته حیران ومه او ساکت

نه پوهیږم چې دا ظلم ولې کیږي پر امت د پیغمبر؟

**ماینز- جرمنی ۲۰۱۵/۱۲/۴**

.۸۱

* صنوبر هغه مېرمن ده چې پدې وروستیو کې طالبانو تښتولې او غواړي د سنګسار عمل پرې عملی کړي.

## مینه

که د مینه وې رښتیا او یا وفا

دا تش جام را ته ډک کړه یو ځل بیا

نن خمار د ستا د سترګو لیونی کړم

په زړه سوز لرم پر سر بله هوا

په هر ځل چې ستا د مخ سپوږمۍ ته ګورم

راته هیڅ شي نعمتونه د دنیا

ټول وجود مې ستا پر لوري په پرواز شي

لاس دې راکړه پروا مکړه د هېڅ چا

پریږده شرم او حیا مه ګرځه نور لیرې

بې له تا ښځه هغه ګوته یم چې ترې نوک کاندي جلا

راشه مینه زما له سترګو ښځه زده کړه

چې هر وارې درته ګوري هغه دم شي په ژړا

ما «بهین» چې په ټول عمر د ترخو شربت څکلی

ملا نه یم چې مې خوښ کړي د خبرو په حلوا*

**ماینز- جرمنی - ۱۰/۱۲/۲۰۱۵**

---

* د خبرو حلوا - شیرین کلامي یا خوږې خبرې

**د منافقو آذان**

هغه وخت مو را په یاد کړي چې لرل مو ښه یاران
که څه هم نه وو بډای خو نړۍ کې و سیالان
گر څه شونډې مو وې وچې خو خاطر مو آسوده و
په سرو سترگو گرځیدلو هرې خوا لکه زمریان
نه ډالر پسې روان و نه مو شوق و د مانیو
خپل جونگړو کې و خوښ، د چا نه و غلامان
آزادي مو هم لرله د هیواد اختیار مو خپل و
امنیت مو هم خوندي و پر خپل مټ مو و ایمان
نه مو حرص و دومره زیات، نه مو طمع وه له چا څخه
خپل ژوندون کې و بسیا، نه و دومره سرگردان
دود، دستور مو هم پر ځای و د یو ملت بچیان و
نه نفاق و دومره زیات، نه و دومره تیت پاشان
د اطلس جامې مو نه وې، «خمتا» پوش د خپل وطن و
نن لباس مو اطلسي شو خو تباه شو ډیر افغان
افغانان شول در په دره، څوک معیوب، څوک په بستر دي
ټول عالم ته تماشه شو چاره نشته د درمان
ځمکه اور ده گرځیدلې دی ملت ته پخپل کور کې
له خپل کلي څخه تښتیي، هرې خوا ته دي روان

لدې وجی زه « بهین» دا د راز خبرې کړم بیا

چې دوکه نشې نور خلکو د منافقو پر آذان

**ماینز ـ جرمنی ۱/۱۰/۲۰۱۶**

## قاتلانو

نن مو بيا هيواد کې غم دی
غم لا څه کړې چې ماتم دی
رب مو ورک کړه قاتلانو
ستاسو شتون د نړۍ شرم دی
خلک انسان سره کړي مينه
ستاسو مينه هم په بم دی
که مو کړو ته څوک په ځير شي
هر قدم کې مو تور تم دی
چې په کړو يې نور خوريږي
دا انسان ندی لړم دی
سړيتوب زده کړی خونخوارو
نوم مو بد په ټول عالم دی

**ماينز ـ جرمنی ۲۲/۰۱/۲۰۱۶**

## د حد ساتنه

هغه شپه چې یار مېلمه وو
په شرابو سخت اخته وو
ډېر ېې وخوړل له حده
ووته له خپل سرحده
نشه شوی وو ډېر زیات
پام یې نه وو پر حیات
چې روان شولو په لاره
پښې یې ولوېدې له کاره
ناڅاپي شولو ګذار پر یوه تیږه
مخ یې ولګید سیده پر دغه تیږه
د پوزې تیغه یې ماته شوه له بېخه
سترګې یې وپړسیدې، سرې شوې بېدریغه
هغه دم خلکو یوړولو روغتون ته
خبر لاړ هم ډاکټر هم درملتون ته
سمدلاسه عملیات شو او بستر
پر «نارکوزو» * یې وجود شو بې اثر
پس له درې ګړی چې وېښ او را بېدار شو

* نارکوز د بېهوشی دوا

د خپل پوزی په غوښوالي گرفتار شو

یوه برخه یې د پوزی وو غوښ شوې

د تیغی ځای یې د پوزې وو لوخ شوې

ده چې ولیده آینه کې خپل رخسار

د لیدو طاقت ترې لاړو بې اختیار

هم پر ځان باندې خفه شو

هم خپل کړو ته په غصه شو

چا چې حد ونه پیژند د دنیا کار کې

تل به سر وې په همدا شانې روزگارکې

زه « بهین» اوس درته کړمه دا وینا

که څوک «حد» ونه ساتي وېني سزا

**ماینز ـ جرمنی ۲۳/۳/۲۰۱۶**

## ډموکراسی

دا څه دموکراسی ده چې لاسونه دې تړلي دي

حیران، حیران یې ګورې خلک په سرو وینو لړلي دي

دا څنګه آزادي ده چې دې واک د بل په لاس کې وي

نیم اولس تښتي شي، نیمايې نور وژلي دي

اوس چغه د ملت خو تر آسمانه پورې جګه ده

دا مال او ځمکه یې پرېږده، ډېر سرونه یې بایللي دي

را جوړیې د جنت په نوم دوزخ پر خلکو ومنه

تنکي تنکي ځوانان یې په سره اور کې را سیځلي دي

یو څو رهزن او غلو ته یې القا ب د چوپان ورکړ

یو څو جاهل، قاتل یې د «رمو» پاسبان ټاکلي دي

بیا یې ډک کړلو له زهرو څخه زمونږ د هیلو جام په زور

د فکر خاوندان یې له خپل ملک ځنی شړلي دي

نن غواړي چې باور د خلکو سست کړي پر یو او بل باندې

یو څو خاین بچي یې همدې کار ته ګمارلي دي

نو ای «بهین» بس کړه د دنیا د ستور همداسې دی

متل دی چې: «د زور اوبه همېش په جګه تللی دی»

**ماینز ـ جرمنی ۲/۸/۲۰۱۶**

## زما زړه

که دې زړه ته یو ځل درشم په سفر
یا دې زړه کړې زما له زړه ځنې خبر
دا د زړه راز به مې ټول درته څرګند شي
که په زړه باندې مې ولرې نظر
وایي د زړونو خوشحالي کې ثواب ډېر دی
پدې شرط چې ته پخلا کړې مرور
اوس دې زړه زما له زړه سره نژدې کړه
چې دا زړونه سره یو شي او برابر
بیا که غواړې دا زما زړه دې هم ستا وي
زړه دې کېږده د «بهین» د زړه پر سر
خو پام کړه! زړه مې در څخه مات نشي جانانه
زړه کې درد دی، زړه کې سوزدی، زړه لري ځاني خطر

**ماینز ـ جرمنی ۵/۶/۲۰۱۶**

## غله رهبر ته!

که په سل واري دې واورمه وينا
که هر څومره راته وکاندې ژړا
که مسجد کې په قران باندې لاس کېږدې
که آخوند شې، که چړي شې که ملا
زه دې پيژنم چې غل يې
نه له خلکو څخه ويرېږې نه له خدايه
نه شعور لرې نه عقل ستر چارپايه
کوم کارونه چې تا کړي په ټول عمر
کوم يې ښه وو اوس پخپله راته وايه؟
بيا هم وايې چې ته هم دلاری مل يې
خلک دې مړه کړل په ناحقه بې حسابه
غنچې زړونه دی زخمي کړلو، خونابه
ډير کورونه دې په غم کښينول هسې
خوشحالي دی له ملک ورکه کړه نايابه
بيا فريب او بيا گناه کړې، بيا په چل يې
د پردو په زور ته نه يې زورور
د دښمن په لمځون مه جوړوه شر
څو لوچک او لنډغر ستا تکيه ندي

خپل ولس باندې تکیه وکړه او باور

بې ولسه لوښ بربنډ اولکه شل يې

**ماینز ـ جرمنی ۵/۶/۲۰۱۶**

## کانه غوړونه

د زړه څلی مې د مینې په اور سوزي

که هر څومره یې پټ ساتم نن سبا

ټول وجود مې د هیواد له غمه درد کړي

خلکو راشی که یې وینی تماشا

د جنون سر حد ته ډیر یم نژدې شوې

بیا ځوریږم په ناحقه، بیګناه

شرین کام یې راته تریخ کړڅو خاینو

زهر یې تیت کړل هم پر ځمکه هم هوا

په لوی لاس یې خلک ناآرام، وطن وېجاړ کړ

اوس بیا تمه هم کوي له ما او ستا

هره ورځ سکروټې اوري پر کورونو

بیا هم وایي امنیت مو تضمین کړی امریکا

ژبني او دا سمتي توپیر هم ډیر شو

ګډوډي ده په ملت کې هرېخوا

عجیبه غوندې بازي ده پدې ملک کې

هره میاشت کې پیدا کیږي یوه بلا

بلې خوا ته د فساد بازار هم ګرم دی

په شعبو کې درنه اخلی رشوتونه په رڼا

مخکې یوازې نارینه په اداري فساد اخته وو

اوس بیا ښځې هم دا کار کړي برالا

که دې سر پر دې خبرو نه خلاصیږي

ور شه یو ځل پارلمان یا د فتر ته د قضا

د قاچاق کار و بار هم درومي پر مخه

قاچاق ډیرو ته نه جرم دی نه ګناه

په علمي رتبو کې هم جعل روان دی

ډیر ډاکټر او ډیر ماستر شو ټول په غلا

پر تاریخ او پر ادب هم یرغل ګډ دی

اجنټان دي روزل شوي پدې هکله له پخوا

چې رسوا څوک په خیانت او یا ډوکه شي

سمدلاسه مشاور شی په ډالر اخلي تنخا

لنډه دا چې نه بازخواست شته، نه قانون عملي کیږي

پر مظلوم که عملي شي، ظالم دی ترې مبرا

زه «بهین» اوس دا ډک زړه وچاته تش کړم

ټول غوږونه کانه شوي څوک مې نه اوري واوېلا*

**ماینز ـ جرمنی ۱۴/۱۲/۲۰۱۶**

* واوېلا: شکایت

## د سولې ارمان

بد عمل او فاسقان به ښه انسان نشي هيڅکله
مات کودی* به ښه «جانان»** نشی هيڅکله
د هغه چې ظاهر يو او باطن بل وي
په پوره به دې ارما ن نشي هيڅکله
چا چې يو واری ايمان په پيسو خرڅ کړ
دا کافر به مسلمان نشي هيڅکله
چې کڅوړيې له بهره بيا ډکيږي
دا دلال به هيڅ افغان نشي هيڅکله
چې ببرزو غوندې په سل ډول نڅا کړي
دا مفسد به با وجدان نشي هيڅکله
چې روا او ناروا ګڼي يو شانې
دا ظالم به مهربان نشي هيڅکله
چې په خوې د ځناورو وي لوې شوی
له خپل کړو به پښيمان نشي هيڅکله
تر هغو چې د سازش بازار وي ګرم
د جنګ راز به نما يان نشي هيڅکله

---

* کودی / تيکر
* جانان/ يو نوع چينی دی

زه «بهين» هسې د سولې په ارمان يم
دا مشکل به ژر آسان نشي هيڅکله

**ماينز ـ جرمنی ۲۰۱۶/۰۱/۲۸**

**د ژوند مزل**

چې کېږدی د ژوندون شوله کړه
بیا نو مګرځه آشنا هسې خفه
څو د تن پوله[1] دې وي پر ځای ولاړه
د ژوندون له هر ګړئ اخله مزه
دا د عمر مزل اوږد ندئ جانانه
د غرور په بیه نه ښایې نشه
څو کوی شې د ژوند بڼ کې خواږه شینده
د ترخو مزه ترخه وې که انګور که منه
بدي مکړه چې بدي به دې نصیب شي
ښه سلوک د لارې مل کړه او پیشه
د ظالم خونه ده ورانه و هر چیرې
امن نلری ظالم په هیڅ ګوښه
«سمبع الحق»[2] ظالم هم مړ شو په بدی کې
بد یې وکړل، په بدی شو هم چپه
«چې بد ګرځی، بد به پرزی»[3]،

[1] پوله - پلوان ، خط یاسرحد
[2] پرزی یا پرځیدل بر ځمکه ولیدل
[3] سمبع‌الحق له سرحد بر، یو افغان دشمن اخوانی و

لدې زیات له چا څخه ښه لرې تمه

د «اخلاق» موزیک کې سحر د جادویې ده

ښه لګیږي پر هر چا دغه نغمه

«بهین» تل پدې نظر دی زما یاره

چې نیکې کې ضرر نشته دا منه

**ماینز ـ جرمنی ۰۷/۱۱/۲۰۱۸**

## د خاینو ځړول

چې مې يار ته ورنيږدې شم په عذاب شي
چې ترې ځان کاندمه لرې کار خراب شي
نه پوهيږم چې زه څه ورسره وکړم
لومړی ښه وې وروسته سره لکه ګلاب شي
چې يې لاس په لاس کې واخلم ځان کړي غلی
چې يې خوشی کړم حال يې اضطراب شي
بيا غنچه خوله يې چې راوسپړل شي کله
باور وکړه ښايسته پرې کاينات شي
خو چې تنده يې تروه ووينم هسې
هغه دم مې دا زړګی کباب، کباب شي
چې پوښتنه ځينې وکړم چې دا ولې؟
وايي: هيواد چې را په ياد شي بل حساب شي
د خپل خلکو حال مې بيا بيا ژړوينه
که غمېزې يې وشميرم لوې کتاب شي
غداران يې ځوروي په ډول ډول
نه شرميږی که رسوا او که بې آب شی
اوس «بهين» کړه دعا چې دا خاين ټول
يوه ورځ ځوړند له ستوني په طناب شي

**ماينز ـ جرمنی ۱۹/۰۲/۲۰۱۷**

## د اوښ او خره ملګرتیا

درنو عزیزانو، زمونږ د خلکو تر مینځ دا خبره عامه ده، هوښیار هغه څوک دی، چې «دخپل ګلیم په اندازه خپلی پښی وغزوي» یعني باید خپل ځان وپیژنی او په ټولنه کې د خپل موقف او توان په اندازه دریځ غوره کړي.

دا وینا هم ډیر وخت یادیږی چې «دوستی خوند کوي له سیاله سره»، شا عر وايي:

هر پیوند له خپل پیوند سره ښه ښکاري
په نارنج کې مې انار لیدلی ندی

خو په دوستی او ملګرتیا کې بیا «کینه او سرتمبګی» ځای نلري. د دی خبرو د اثبات په غرض ډیر کسان مثالونه راوړي او ځینې هم بیا متلونه اوکیسې وايي، ما هم پدې هکله له هغو فولکلوریکو کیسو څخه یوه کیسه نظم کړې چې هیله من یم خوښه مو شي، له نیمګړتیاو څخه یې د مخه بخښنه غواړم.

یو اوښ او یو خر شولو ملګري

دواړه ووتل آرامه له خپل کلي

ولاړل لیرې یوې ګوښې ته سره دواړه

چې له ظلم د انسان شي لږ بیکاره

څه موده ول ښه آرامه او خوشحاله

نه په فکر د آبادی وو نه ویجاړه

پس له څه مودې یې نیت شو په چکر

چې وګوري د خپل تم ځای پس منظر

په ناڅاپه برابر شول پر یوه کلي

پک حیران شول، خپل ځانونه یې کړلو غلي

بیا اوښ خره ته ووې: ای ګرانه ملګری

چې آواز جگ نکړې، ونه وایي «بدلې»
چې د کلي خلک به شي پر مونږ خبر
بیا به هماغه پخوا حال وي، کړو به بار سره سفر
خره وې: اوښه یاره څه مې څوروې
همدا اوس آواز راغلی، که اورې
د عادت له مخې نشم ځان ساتلی
په چوپتیا مې زړه تنګیږي، شم سترې
پدې ډول یې پیل په «عرعر» او جگ آواز کړ
د نورو خرو په شانې «سر» ساز او آواز کړ
خلک خبر شول دواړه یې وتړل په پړي
بیا یې بار کړل بیا یې روان کړل پر بل کلي
چې څه ولاړل مخ ته راغی لوې سین
لدې سینه باید تیر وای په تمکین
اوښ چې پوه وو په چمونو د لامبو
غم یې نه وو له ډیروالي د اوبو
خو خره ستونزه درلودله د لامبو
لدې وجې ویریدلو له اوبو
خلک مجبورشول چې خر اوښ ته ور په شا کړی
پدې توګه یې خلاص لدې بلا کړي
چې خر اوښ ته ور په شا شو په کراره

اوښ ته يې ووې: ای زماعزيزه ياره
پام کړه مست نشی په سين کې ونکړې ګډا
چې له شا څخه دې ګذار نشم اوبو کې په خطا
اوښ چې ذاتاً کينه ګر دی په زړه سخت
خره ته ووې: دا حالت په مونږه راوست تا بدبخت
تا چې غوږ ونه نيوه زما په وينا
اوس له ما نه تمه مکړه د ګډا
بيا اوښ ګډ په مستی او په خيزو شو
خر ګذار شو په اوبو کې په ګونډو شو
د اوبو څپو کې غرق شو خر فنا
اوښ هم پاتې شو يوازې او تنها
دوه چې نه وې سره جوړ همدا يې حال وې
مخالف فکرونه کله په يوه حال وې
چې جوړښت نه وې، ياری نکړی بقا
که هر څومره تظاهر وې په اخلاص او په وفا
ما «بهين» چې درته راوړ دا داستان
د «دری» شاعر هم واوره دا بيا ن
«کند همجنس با همجنس پرواز
کبوتر باکبوتر باز با باز»

**ماينز ـ جرمنی ۳۰/۰۳/۲۰۱۷**

## سر ماتول

درنو او معززو دوستانو: نن بيا هم غواړم، يوه بله فولکلوريک کيسه چې ما نظم کړی ده، ستاسو حضورته وړاندی کړم، هيله من يم چې په لوستلوبې ستړي نشی او خوند درکړي، بيا هم له نيمګړتياو څخه يې د مخه بخښنه غواړم.

په پخوا يوه زمانه کې

ناست يو زوړ وو په کوڅه کې

ډوب وو ځان سره چرتو کې

د بې‌وسې په غمو کې

نه په فکر د دنيا وو

نه په طمع له کوم چا وو

له خپل ځان سره اخته وو

خو له خويه فرښته وو

يوه ورځ لدې کوڅې

يو «لوچک» د زمانې

تيريدلو په نخرو

خو عمل يې وو د خرو

پام يې شو پر دې انسان

يوې تيرې ته لاس کړو دې شيطان

وار يې وکړو پر دې خوار زاړه بابا

سر يې مات کړو ورله هسې په خندا

مظلوم ودردیده ډیر

څو شیبې شو ځان ترې هیر

لږ چې وموندە سکون

شو د تیږی په لټون

تیږه یې وموندله بیا

کړه یې له ځان سره خفا

څه موده وروسته حاکم د هغه ښار

شو خبر د لوچک لدې کردار

چې ببوزلي انسانان دی ځوروي

په ناحقه هم ضرر ورسوي

امر یې وکړ چې لوچک شی گرفتار

په یوه «کوهی» کې کړي ځوړند او ایسار

دمه پس لوچک ونیول شو او ځوړند له پښو

په کوهي کې یې کړ کوز لکه پیشو

زوړ ببوزله چې خبرشو لدې حاله

ځان یې ورسوه کوهي ته بې مجاله

چې ولید حال د دې لوچک

شو خوشحاله نیت وکړو ورته کلک

په هماغه تیږه یې وویشته په سر

سر یې مات کړ د لوچک پرې بې خبر

لوچک پورته وکتل وزوړ بابا ته

وې: «څه مې بد در رسيدلی وايه ماته؟»

بابا ووې :«زه هغه يم چې دی ووېشتم په سر

ته هم وېنې نن د خپل عمل کيفر

د ککرو ماتول چې وې آسان

چا به نه گاللی هيڅکله تاوان

ته چې نه ساتې د بل انسان حرمت

له چا طمع مه لره د خپل عزت

که ته غواړې چې دې سر وي په امان

فکر مکړه په ضرر د بل انسان»

زه «بهين» چې درته کړمه دا کيسه

په تن درد لرم، په زړه ډېره غصه

زمونږ ملک کې په سرونو لوبې کيږي

هر بېوزلي په څو وارې تش خرڅيږي

پدې ملک کې د سرونو معاملې دي

ډېر د بل د سر وهلو په هيلی دي

**ماينز ـ جرمنی ۱۱/۰۴/۲۰۱۷**

## روزی او شراب

درنو عزیزانو: مسلمانان عقیده لری چې «روزی رسان» الله دی او د رزق او روزی ضمانت خدای کړی دی او دا یوازې پروردګار دی چې هر خوځنده موجود ته د روزی د زیاتولو او کمولوقدرت لري. له همدې وجې ټل د مسلمانانو ترمینځ دا خبره عامه او قبوله شوې ده چې «روزی رسان» یوازې او یوازې پاک الله دی، خو البته په عالم د دنیا کې د ځینو ځینو لارو چارو څخه د وسیلی په توګه ګټه اخیستل کیږي.

پدې هکله مې څو میاشتې مخکې له یو دوست (محترم سیدحسن رشاد) څخه یوه طنزی کیسه اوریدلی وه، نن هغه را په یاد شوه او ما هم هڅه وکړه چې هغه د نظم په بڼه واړوم اوبیا یې د اختریزی تحفی په ډول ستاسو حضور ته وړاندی کړم، هیله ده چې د پام وړمو وګرځي، خو له نیمګړتیاو څخه د مخه بخښنه غواړم.

نن مې بیا ذهن ته راغله یوه کیسه

خو چې ولولې ګوره نشی په غصه

له نن ورځې څخه ډیر موده پخوا

یو شاعر د زمانې وو ډیر رسوا

وو په شعر او شاعری کې لوی استاد

مګر د شرابو او مستی وو تینګ معتاد

یوه ورځ یې کور کې نه وه آذوقه

ښارته ولاړ د خرید په نیت سیده

نو په ښار کې چې شرابو ته شو پام

هر څه یې هیر کړه، شو په فکر د یوجام

واړه خرید یې د شرابو شوې کڅوړې

سترګې یې پټی شوې نه کتل بل لوري

لږ څه وروسته شو روان د کور په لور
خو په کور کې يې ميرمن ورکړ پيغور
«نه غوړي لرو په کور کې نه ډوډۍ شته په تبۍ*
دسترخوان مو هم خالي ده، يو محتاج د يوې مړۍ
ته خو لاړی چې د خيټې غم مو وخورې
تا شراب راوړل احمقه سر دی وخورې»
شاعر ووېل: ای ميرمنې هسې مه جوړوه شور
خلق دې مه خرابوه، هر څه جوړ دي دلته نور
مونږ مسلمان يو، په اسلام لرو ايمان
کافر نه يو چې منکر شو د قرآن
په قرآن کې خدای پخپله د «روزی» ذمه وهلې
خو دنيا کې د « شرابو» ذمه نه ده چا منلې
ما د خدای د عهد له مخې وکړ دغه کار
خدای مو ګورې پروا مکړه د روزګار
نن ته پرېږده په شرابو کړو موږ ځان
د سبا لپاره شته دی هغه ستر «روزی رسان».

**ماينز ـ جرمنی ۲۴/۶/۲۰۱۷**

* تبې / تاوه

## د آشنا لیدنه

دا زمان روان پر مخ دی تش یو نوم یې پاتې کیږي
دورانونه شولو تیر، دا دوران به هم تیریږي
را په یاد کړی تیر وختونه څه فضا د صمیمت وه
که کلونه هم پرې تیر دي خو اوس هم په ښه یادیږي
د یارانو بیا لیدنه دې زمان کې سعادت ده
چې یاران درسره نه وې پدې ژوند کې څه پاتیږي؟
د لیدلو دود رواج کړی، په لیدو کې ضرر نشته
په لیدو د ښو دوستانو د انسان عمر زیاتیږی
افغانانو سره «پاس» هم د «نمک» هم د «سلام» وو
دا نن څه وربانديې شوي چې هر څه ځینې هیریږی
پریږده، بس کړه ځان ځاني او جلاتوب نور
که هر څومره ته قوې شې، بې له ما دې نه رغیږي
راشه لاس د مینې راکړه چې پر مخ باندې د ښکل کړم
د هیواد په خاطر راشه چې دښمن دی وچاودیږي
زه «بهین» چې له ډیر وخته انتظار د خپل آشنا یم
د زړه تخت مې ورته جوړ دی، دا خبره نه پټیږي

**ماینز – جرمنی ۵/۷/۲۰۱۶**

## انځور ګر او تاريخ پوه

درنو دوستانو دا هم يوه بله طنزی کيسه ده چې ما په نظم کې راوړی، خو هيله من يم چې څوک يې ځان پوری ونه تړي په خاص ډول د هيواد هغه سپيڅلي او په هيواد مين مورخين چې ټول عمر يې د هيواد او خلکو په چوپړ کې تير شوی او يا تيريږي او زه ورته د زړه له تله احترام لرم. مګر لدې څخه هم انکار نشي کېدای چې وو او شته دي همدا اوس هم داسې د زور او زر مزدوران چې غواړي او هڅې لري تاريخ ته بله بڼه ورکړي او د خپل ايمان او وجدان په خرڅوولو پر حقايقو خاورې واړوي.

د نظم له نيمګړتياوو څخه د مخه معذرت غواړم.

دوه کسان وو په «ترن» کې مسافر

دواړه ناست وو خوا په خوا کې مهاجر

پيژندګلوي يې سره نه وه له پخوا

وو پردي، نه وو په خپلو کې آشنا

په ترن کې وو سکوت او دواړه چپ

نه خندا وه، نه هم ټوکې، نه «ګپ شپ»

سفر اوږد وو له ستړياو څخه ډک

دواړو يو او بل ته کتلی هک او پک

آخر دا يوه وبل ته ووې په خندا

راځه ګپ ولګو او شو آشنا

دا تر څو به يوو بل ته سره ګورو

او تر څو به غلی ناست يو، نه به بنورو

زه انځورگر ايم، انځورونه جوړومه

د انځور په جوړولو دا خپل ژوند سبا کومه

اوس ته ووايه دا ته څوک يې او څه کار کړې؟

څنگه ژوند دی تيروې، په څه روزگار کړې؟

هغه ووې: «زه ليکوال يم د تاريخ او تاريخ پوه يم

د تاريخ په ليکو بوخت، گډ په دې کړو يم»

انځور گر: بس کړه، بس کړه ياره پوه شوم

زما او ستا آشنايي نه شوه پدې پوه شوم

د تاريخ ليکونکي ډير سره دروغجن وي

آغشته د خدای په قهر او ډير پمن وي

په ټول عمر دوی په دروغو وي اخته

بيا دروغ چې پيدا نکړي حقيقت ته شي تمبه

يو ستاينه کړی د زور او بل ليکنه په پيسو کړي

څوک پر حق کړي سترگې پټی ټولې لوبې د پيښو کړي

له دروغو څخه يمه سخت بيزار

دروغ نشم اوريدلی پدې لار

د دروغو اوريدل سرگرداني ده

د جلعياتو لوستل هم يوه ستوماني ده

وايي د جعل تاريخ لويه مفلسي ده

په جعلي تاريخ کې پټه ابليسي ده

لدې وجې زه نه غواړم چې ملګری د شیطان شم

موده وروسته بیا په خپل کار پښیمان شم

ما «بهین» چې واوریدله دا کیسه

کړمه هر ګړۍ له ځان سره غصه

چې دا ولې غلطي دیوه انسان

ډیر انسان په بل انسان کړي بدګمان؟

**ماینز- جرمنی ۳۱/۸/۲۰۱۷**

## د پارلمان غل

درنو او محترمو دوستانو: پدې اونی کې د طلوع دتلویزون او د کابل د ځینو نورو خبرې رسنیو د خبر پر اساس داسې اسناد لاس ته راغلی چې ښیي، د افغانستان د ولسی جرگی رئیس او د ولسی جرگی د دارالانشا رئیس د ولسی جرگی د بودجی څخه د میلونو افغانیو د غلا په تور تورنوې. که څه هم قضیه اوس د لوې څارنوالی د اداری د تحقیق په غرض هغی اداري ته راجع شوې ده. خو گمان نکوم چې لوې څارنوالي به پدې هکله رښتینی اجراات وشي کړای.

دا لاندی نظم هم په همدی اړه ترتیب شوې او تاسو عزتمندو عزیزانو ته ډالی ده، هیله ده چې څو شیبې مو مصروف وساتي.

بیا د غلا خبرې آورم هری خوا

داسې ښکاری چې بل غل شولو رسوا

پدې ملک باندې څه شوي لویه خدایه

هر سړی چې مقام واخلي لوې غل شي په رښتیا

دې هیواد کې رنگارنگ غلاوې رواج شوې

څوک پیسې نیسې، څوک ځمکې، څوک طلا

خوار وگړی گرځیدل به په کوڅوکې

د جهاد له برکته اوس دوی گرد شولو بډا

چا قصرونه ځان له جوړ کړه، چا مارکیټ او بنگلی دي

چا پیسې دوبۍ کې اینښې چا په بانک د اروپا

هر یو وایي مونږ جهاد کړی دا ملک مو غنیمت دی

دا مو حق دی که څوک لوټ کړو، یا تالا

«سیاف» وايي: «جهادیان لری توپیر له نورو خلکو
څوک چې نه منی دا امر هم گناه کړي هم خطا»*
د جهاد فریضه همدا وه چې د خلکو مال ترې چورکړه
که خوښ نه وي لاس يې خلاص تر امریکا
لدې وجی دا رئیس د پارلمان هم په غلا بوخت وو
له وړو څخه يې مه پوښته له ما
زه «بهین» چې دغه چارې تولې گورم
پک حیران شم چې زه وژاړم په چا

**جرمنی- ماینز ۲۷/۹/۲۰۱۷**

* د شهید په اونی کې دعبدالرب رسول سیاف له وینا څخه.

## مظلوم انسان

په زړه درد لرم خو چا ته څه ویلی نشم
له ډیره درده پدې درد څوک پوهولې نشم
یوه انسان سره آشنا یم چې جنجال لري ډیر
لدې جنجال یې زه هم اوس خلاصولې نشم
هم دردیدلی دی او هم په کړاوو اخته دی
پدې دردیږم چې دا درد یې کمولی نشم
یو خوا سپیری د ښکېلاک خورې بل یې ملک تباه شو
دا ډول، ډول ربړیدل یې زه لیدلی نشم
دا د افغان بچي دي هری خوا ځوریږي هسې
دا مظلومېت یې نور په هیڅ ډول منلی نشم
هم یرغلگر پرې ظلم کاندي هم کورني خاینان
د پردو ظلم خولا پریږده ، خپل زغملی نشم
د افغان ملک کې بربریت د قانون حکم لري
دلته قانون او عدالت پلی کولی نشم
پرون کابل کې په بمب مرکز د کلتوری ونړید
نن یې د مړو شمیر په گوتو در شمیرلی نشم
نو الهی خپله گورې ته حال د افغان بچېو
ستا به رضا وې، زه «بهین» ورته کتلی نشم

**جرمنی ـ ماینز ۱۲/۲۹/۲۰۱۷**

## د مینې آرمان

که هر څومره ته کړي ما له یاده هیر
پروا نکړي دا به هم شي پر ما تیر
نه ګیله کړم نه دې بد وایم و چاته
نه هم غواړم چې ګریوان کړم څیرې څیر
ستا په یاد به ستا انځور ساتم په زړه کې
که هر څومره په ناخوالو کې یم ګیر
اوس چې ناست یم ستا د مینی په خمار کې
نه پوهیږم چې «وېسکې» وخورم که «بیر»
کله کله مې «ودکا» ته هم زړه کیږي
خو ویریږم چې «نشه» نه شم ډیر
ځینې وایي چې «کنیاک» په غم کې ښه وې
بل بیا وایي «واین» بهتر دی چې دوا ده د اکسیر
دا «بهین» چې ستا له غمه شرابي شو
حیف افسوس کړي ستا په کار او خپل تقدیر

**ماینز ـ جرمنی ۱۲/۷/۲۰۱۸**

## د پردو ګټو نوکر

هغه چاته دې راز ووايه چې له درده دې خبر وي
پر هغـه باور ونکړې چې نادان او بې خبر وي
پوه انسان پدې نړۍ کې وايم «کميا د سعادت » ده
له جاهل څخه ځان ساته ، هر ګړه يې ممکن شروي
د ژوندون په لوی بهير کې هرې خوا ته منډې مکړه
پر هغه لاره روان شه چې سيده او بې خطر وي
په تيارو کې لاس وهنه تيروتنه د انسان ده
ورک هلته شې ونډلې چې رڼا او ښکلې لمر وي
ناسته و هغو سره وکړه چې خبره باندې پوه وي
له هغه ځنې څه غواړې چې وچ سرېي لکه خروي
د يارانو مشورې که هر څومره هم ترخې وي
د پردو له نازه ښې وي که څه هم ډک له شکر وي
آزادي د ارادې هر افغـان ته «بهين» غـواړی
د پردو ډول ته نڅا د خوښی پر ځای ضرر وي
نن نړۍ کې هر انسان خپلو ګټو ته ژمن دی
شته دي داسې افغانان چې د پردو ګټو نوکر وي

**ماينز ـ جرمنی ۱۸/۰۲/۲۰۱۸**

## یوه هیله

نه جنت غواړم له تا څخه، نه شراب د انطهور
ندي ظلم پر ځان منم مه خبره کړه د زور
نه له تا سره جګړه کړم نه له ستا غواړم کور
بس دا ملک مې راته پریږده، ځه پرمخه د ښه نور

ما منصور غوندی په دار کړه
ځه دا ملک مې په کرار کړه

ګمان دا وو ته به مونږ لره ښه یار شي
ښايې داسې، بدې ورځ له به پکار شی
نه چې خپله مونږ له هسې لندۍ مار ې
هر یو زړه ته د اغزیو لوې خار شې

ما منصورغوندی په دار کړه
خو دا ملک مې په کرار کړه

دلته هره ورځ انسان مري
څوک په پټه څوک عیان مري
څوک په مال څوک په ایمان مري
په هر نوم دلته افغان مري

ما منصور غوندی په دار کړه
ځه دا ملک مې په کرار کړه

نور نه غواړم ستا «حقوق وایم د بشر»

ټول د غله کړه حاکمان، دا و ستا ښکلی نظر
اوس چوکۍ پورې نښتي نه ښوریږي له یو سر
که څه وایې «ګوت څنډی» درته کوې بیا د خطر
ما منصور غوندی په دار کړه
ځه دا ملک مې په کرارکړه
نه مو ته آراموی شي نه په بل یې روادار
نه د مونږ پریښودو کار ته، نه پخپله یې د کار
افغانان د کړه بدمرغه، بیکاره او بې روزګار
خدای څخه وډارشه ظالمه، نه ده دا د انصاف لار
ما منصور غوندی پدار کړه
ځه دا ملک لږ په کرار کړه
زه «بهین» اوس درته کړمه دا خبره د رښتیا
نور مو مه اړ باسه هسې په ناحقه په بلا
پرهغه لاره چې درومې له اوله وه خطا
مونږد غرق کړوستمګره بس کړه نوره دا ګناه
ما منصور غوندی په دار کړه
ځه دا ملک لږ په کرار کړه

**ماینز ـ جرمنی ۰۳/۰۴/۲۰۱۸**

**غل ملا**

په یوه کلي کې ملا
ګیر مسجد کې شو پر غلا
چا ترې وپوښتل چې ولې؟
وې: د ملا کار دی همدا
یا به نورو ته لار ښیې
یا به خپله کړي دی غلا
چې مسجد کې دا کار وشو
پر مې مه ګڼه آشنا
خدای له پاسه را ته ګوري
ضرورت کې ده روا
هغه دې ندي آوریدلي
چې اړتیا ده لویه بلا
نو ملا چې شی مفلس
بیا له خدای نکړي حیا
نه له چا څخه ویریږي
نه پروا لری د چا
ملایان دی د بل نسله
ډیر یې ښه دي، ډیر رسوا
ته چې زما ځینې دا پوښتې

دا هم ته واوره زما

که ملا وکړله غلا

نه ده دا کومه گناه

گرده ورځ تبلیغ د دین کړي

خلک یې بولي خپل پیشوا

نو پیشوا چې هرڅه وکړي

هغه مه گڼه خطا

کنه، دوزخ به دی بیا ځای شي

او محتاج به شي د دعا

اوس «بهین» راشه واوره

د ملا صیب دا فتوا

دیوه کلي رهنما چې وې غل

عامي خود جوړشی د کلي اژدها

**ماینز ـ جرمنی ۰۸/۰۸/۲۰۱۸**

## قاتله

درنو عزیزانو! نن بیا د کابل ښار په شپږمه حوزه کې چاودنه شوې ده چې د خبرې رسانو په حواله له امله یې ۵۷ بیگناه انسانان مړه او ۱۱۹ نور ټپي شوي دي.

پدې هکله ما دا لاندی نظم چی زما د زړه د درد ښکارندویي کوي په بېړه ترتیب او تاسو عزتمندو دوستانو ته ډالی دی، له نیمگړتیا و څخه یې د مخه بخښنه غواړم.

ای قاتله خدای دې غرق کړه پدې کار
لعنتونه دې د خدای وي ستا په لار او ستا په کار
شرمنده به په دنیا او آخرت وې
ځناور به داسې وکړي، کوم چې کړی تا دا کار

نه شرف وینم په تا کې نه وجدان
بې وجدانه انسان نلري ایمان
چی شرف او وجدان دواړه دې خراب شو
څوک دې نه گوري په سترگه دانسان

د شیطان اولاده وایه د انسان وژنه ده پر تا روا؟
کوم خبیث تا له درکړی دا فتوا؟
چې بې وزله خلک مړه کړه په ناحقه
خدای له څه ده ستا ځواب پدې گناه؟

ستا دا لار او طریقت د شیطنت ده
ستا اعمال او کړه واړه رذالت ده
د ابلیس بچیه و خپلو کړه ته ځیر شه
ستا توپیر له ځناوره، کوم صفت ده

زه «بهین» اوس درته کړمه دا دعا
رب دې ورک کړه اې قاتله له دنیا
دا تر څو به د غلطو عقایدو پر بنا
خلک به وژنې، نه به کړې د چا پروا

**ماینز ـ جرمنی ۰۶/۰۴/۲۰۱۸**

## د آخوند دليل

د قدر وړ دوستانو! دوه ورځې د مخه مې د خپل محترم دوست ښاغلی سيد حسن رشاد سره د زاړه کابل په هکله خبرې کولې او هغه را ته د هغه وخت د کابل ښار د پخوانيو خاطرو د يادونو په ترڅ کې يو جالبه او د خندا وړ کيسه وکړه چې بيا ما هم وغوښتل دا کيسه وروسته د نظم په بڼه واړوم او له تاسو سره يې شريکه کړم او نن دا دی په لاندې ډول تاسو ته ډالۍ ده.

په زاړه کابل کې وو يو څو بيکار
ګرځيدل به په کوڅو کې خوارو زار
نه يې کار وو، نه يې کسب او نه روزګار
يا به يې غلا کړه يا به کړه چيری قمار
ټوله ورځ به يې پر خلکو کړی ملنډې
ماښومان به يې ځورول هسې په لار
کله کله به يې پټول پردي چرګان هم
له چرګانو يې جوړوله شوربا د چاريکار
مګر پدوی کې وو يو کس لږ څه ملا
چې شوربا به يې خوړه، خو له غوښې کړه انکار
چا تری وپوښتل چې غوښه ولې نخورې؟
وې: دا غوښه د غلا چرګ ده پرې به شمه ګنهکار
بيا يې تری وپوښتل: د شوربا په هکله څه وايي؟
وې: شوربا غوړې اوبه دی، در کوې قوت د کار

ما «بهین»چې واوریدله دا کیسه

وایم د اخوند په منطق مکړی اعتبار

**ماینز ـ جرمنی۲۰۱۸ /۲۷/۰۸**

## پارلمانی ټاکنی

بیا تنور دی گرم شوې د «مافیا»

بیا فعال دي دلالان پر هرې خوا

بیا د "خلکو استازي" را جگ شوي

هغه څوک چې خلک یې لوټ کړه په رڼا

خو له پرون څخه یې توپیر دی نن پدې کې

چې د پلرو پر ځای، زامنو ملا تړلې ده دغلا

دا د «اجنټو» اولاده غواړی وکیل شي

په قیمت د بربادی زما او ستا

د لیوه بچي عادت د مور او پلار وي

پر هغه اغیزه نکړي ستا خبرې ، زما ژړا

قاتلان او قاچاقبر هم نوماندان شو

چې "استازی" شی یا غړی د "سنا"

اوس ډالر درکوي، هسې خوشحالي کړې

څلوېښت چنده درنه غواړي بیا سبا

خو ای خلکو لږ راوېښ شی خدای لپاره

هسې نه چې باور وکړی پر دوی بیا

زه «بهین»اوس په وار وار دا درله وایم

د «آزمولې بیا آزمېښت» ده لوی خطا

**ماینز ـ جرمنی ۱۸/۱۰/۲۰۱۸**

## ټرامپ ته :

درنو عزیزانو:

ځو ورځې د مخه د امریکی جمهور رئیس ښاغلی دونالد ترامپ په خپله هغه ناندریزه وینا کې چې په واشنګټن کی یی د پا کستان د صدراعظم عمران خان سره د لیدوپه وخت وکړه، د افغانستان په هکله داسې وویل: « **که زه وغواړم د افغانستان په جګړه کی بریالی شم دا کار به په لسو ورځو کی تر سره شی خو امکان لري لس میلونه انسانان مړه او د افغانستان هیواد د نړۍ له نخښې څخه محوه شي. خو زه نه غواړم دا کار وکړم.»**.

د ترامپ دی جنجالي وینا د ډیر شمیر افغانانو غصه او غبرګونونه را وپارول او هغه وینایی افغانانو او افغانستان ته سپکاوي وباله. پدې باب ما هم یو نظم ترتیب کړئ اوپه لاندې ډول تاسو درنو لوستونکو ته ډالی ده هیله ده د پا م وړ وګرځیږ.

**که سل ځلی می ته اونیسی په اور**

**که ویجاړ کړی را ته هر کلی او کور**

**که پوځونه او سلاحوی راوړی نور**

**که دا ټول هیواد هم ونیسی په زور**

**ندی واک پر ځان منی شم نه فرمان**

**نه به هیله دی پوره شی نه آرمان**

**دلته ډیر پردي راغلی، خپل ځانونه یې آزمویلي**

**په زخمي بدن وتلي، په شرمو هم شرمیدلي**

**چا سلاح دلته پری ایښی د چا مړي پاتې شوي**

**خو هیڅکله یی بیا بیرته په بدیی ندي کتلي**

**هسې نشي چې ته هم شې پښیمان**

**نه به هیله دی پوره شی نه آرمان**

نوری اوتي بوتي مکړه ته چټي

چې حساب نشې په شمیر د "رواني"

په خبرو کې پام ساته، زده کړه لږ «دیپلوماسی»

که دا نکړې بیا خوله پټه کړه بیخي

سپکاوئ د نورو کار ده د شیطان

نه به هیله دې پوره شي نه آرمان

زه «بهین» اوس درته وایم چې ای ګرانه

د نړی مشری نده ډیر آسانه

ښه به دا وی چې لاس واخله لدې کاره

هم به ته هم نړئ شي په آرامه

ته اوس زوړ یي په درد نخوری د زمان

نه به هیله دې پوره شي نه آرمان

ماینز ـ جرمنی ۲۷/۷۱/۲۰۱۹

**ډوکه مارکاندیدان**

نه په درد د دې ملت خوری، نه په کاریاست د دنیا

نه مو خیر رسی وچاته، نه په فکر یاست د چا

واړه کړه مو د ابلیس دي، لټوئ د نفاق لاره

نور څه غواړئ لدې خلکو؟ بس مو نه ده دا جفا

کله د یوه بد بل ته وایئ، کله بل کړئ بل ته بد

کله بل پسې دروغ وایاست، ځئ په لاره د خطا

خوله مو مه بنورووئ نوره، خلک باور پرتاسو نکړي

ټول مو پیژني خاینو، بربنډ شوې یاست رسوا

واړه ژوند مو چل کې تیرشو، د مادي گټو لپاره

اوس خبرې د «فساد» کړی، ای بې شرمو او بې حیا

د ملت ځمکې مو چور کړې په ناحقه او ډوکه کې

خدای مو گوري هر گړی، شی برباد او هم تباه

ډیر کلونو مو پر نورو د بې دین تهمت وهلو

نن پخپله بې ایمان شوی، دې ته څه لری فتوا

د چوکې د غصب لپاره، رنگارنگ معاملې کاندئ

«جهادی» او «کمونیست» مو سره یو وشو برالا

د سیاسی قدرت په حرص کې بدلوی خپلې څیری ژر

نه خبرو کې صادق یاست، نه مو قول دی ربنتیا

یو واحد «ملت» مو تیت کړو په قومونو او په ژبو

ای ظالمو خونخورانو اوس مو چیرې ده بقا

که هر څومره د عدالت او د وحدت آواز کړئ پورته

خلک پوهیږي، هوښیارشوي، چې ډوکه کړئ او ریا

زه «بهین» بیا درته وایم چې د دروغومزل لنډ دئ

که ډوکو څخه لاس وانخلئ، په دار خیژئ نن سبا

**ماینز – جرمنی ۰۱/۱۹/۲۰۱۹**

## خرتوب

په پخوا وختوکې وو يو ډنګرخر

له ډېر باره وو ستومانه در پدر

ګرده ورځ به يې د خاوند بارونه وړل

وو خواشينی لدې کاره په هر ځل

تل يې ځان سره کولو دا ګفتار

ربه ته مې دا خاوند کړې ژر مردار

يوه ورځ يې خاوند واوريدو بيا ن

سمدستي يې ځنی وکړلو پرسان

چې د څه په خاطر کړې دغه ښيرا

که زه مړشم بل خاوند به کړې پيدا

هغه هم به پر تا وړي دغه بارونه

ځوک خبردي چې د زيات نشي کارونه

زما پرمړيني ته له باره نه خلاصيږې

ته پيدا يې همدې کارته ښه پوهيږې

ښه به دا وي که د خواست شي له خدا دا

چې د خلاص کړي له خرتوبه په رښتيا

بيا به ګرځې هم آزاد، هم مستقل

نه به بار وي او نه به وي درته مشکل

ځکه ستا لویه گناه ده دا «خرتوب»
څو ته خر یې کوی نشې آرام خوب
ما «بهین» چې واوریدله دا کیسه
شوم خوا بدی د خره حال ته په غصه
هغه دم مې را په یاد شو د هغه انسان حالت
چې دښمن وي د خپل ملک او خپل ملت
وایي دا خرتوب او جهالت سره یو سان وي
د ناپوه انسان ژوندون هم همدا سان وي
پر خره هم وي خلک سپاره، وړي بارونه
پر احمق انسان هم نور کوي حکمونه

**ماینز ـ جرمنی ۲۶/۰۱/۲۱۰۱۹**

## فساد

هره ورځ زمونږ د ملک د فساد خبرې کيږي
خو دا ملک کې ورځ تر بلې د فساد کچه جګيږي
يا دا ملک ډير فسادي دی يا د فساد «وبا» راغلې
بې فساد لدې خلکو بله تمه اوس نه کيږي
څه فساد وو له پخوا څخه، څه فساد "دوستانو" راوړ
نن بداى يو له فساده، پـه فساد مو نوم ياديږي
د فساد بازار دی ګرم، د دروغو معاملې دي
صداقت له ملکه ورک شو، په ربښتينې خلک شرميږي
عجيبه دوران راغلئ د فساد «ليست» کې لومړي يو
د جهاد له برکته هرى خوا فساد خپريږي
سم انسان وي په خپل ژوند کې چې اختيار په لاس کې ورکړي
هر څه هير شي ځينې هسې په فساد کې لاهو کيږي
هم وزير، هم وکيل او هم قاضـی مـو فسادي شـو
د جنرالو خيټى مفتى له فساده نه پړسيږي
که هر څومره ورته وايي، که هر څومره شی «رټلی» *
نه د چا آورى خبره، نه پخپل فساد ويريږى

---

* رټلی ـ تحقير يا توهين شده

خدایه ورک کړی لدې ملکه دا فساد او فسادګر ټول

د «بهین» دعا کړه قبوله چې بېوزلي مو ځوریږي

**ماینز ـ جرمنی ۱۵/۰۴/۲۰۱۹**

## د ټاکنو«چنجیان»[1]

په پخوا وختو کې وو یو ښه مارګیر

پام یې ساته خپل مارانو ته په خیر

د هغه وه له مارانو سره مینه

بې له ماره یې په تن کې نه وه وینه

شپه او ورځ وو له مارانو سره بوخت

د دنیا له زده کړو همدا وو ښه آموخت

یوه ورځ یې نیت وکړو د سفر

په کوتیو[2] کې ماران کړلو د ننه له یو سر

بیا یې واړه دا کوتی پر خپل اسپ باندې کړل بار

په حرکت شو د مقصود په لور او ښار

له قضا په یوه تشه یوې کوتی کې

یوه چنجی وو ځان پټ کړی په تګۍ[3] کې

چې نیمایې لاری ته ورسید مارګیر

چنجی شو لږ ورخطا او څه دلګیر

وې، نه چې پوه شی دا مارګیر را باندې لارکې

---

[1] «چنجیان» یا چنجی ، کرمک‌ها یا کرمک
[2] قوطی‌ها یا قوطی
[3] چال یا فریب

ما به واچوې بهر په کوم بازار کې

نو له کوتې سر بهر کړ او په جگه يې نعره وکړله دا

«مونږ» «ماران» ته چيرې بيا يې اې «کاکا»

ځان يې وشميره په ډله د «مارانو»

که څه هم وو دې «چنجي» زما عزيزانو

نن چې گورم د افغان « ټاکنو» کار

را په ياد شي د چنجي «چلند» مارگير سره په لار

د هغو نوماندانو د رايو کچه چې تر ټولو ده را ښکته *

خو آواز يې بيا تر ټولوده اوچته

داسې ښيي چې همدوی لوی سيالان دي

او په اصل کې د «لوبې» اتلان دي

خو خلک پوهيږي چې دا واړه مکاران دي

آشنايان د شياطينو د زمان دي

**ماينز – جرمنی ۱۶/۱۱/۲۰۱۹**

* سره لدې چې د انتخاباتو نتيجه نده اعلام شوې ولې هم نوماندان او هم خلک پوهيږي چې څوک قوې (مار) او څوک ضعيف (چنجي) دی.

## پخوانی منافقین

یوه ورځ مې زړه خوشحاله کړه ملګری
په ټینګ عزم تعصب کړه له ځان لیرې
تر هغو چې دا ملت کړو بیا یو موټی
له خاینو سره مه کېنه منلی
دا منافق د هیڅ انسان اولاده نه دی
جوړوې زمونږ لپاره نوې شخړې
و هر کارته دوی ځان مخکې مخکې کاندي
چې ناکام شي بیا یې نه مني ښتلې
دوی و خپلو تیرو کړو ته نظر نه کا
چې هیواد یې کړ ویجاړ خلک یې ځپلې
د کابل «قصاب» «راکتونه» له چا هیر دي
د «افشاریانو» په ورمېږو* څوک وو ختلې
د ملت له سترګو اوښکې دغم اوري
دا خبېثو بیا پخوانیی لارې نیولې
بیا دوی غواړی چې پر سرونو مېخ ورټک کړي
بیا کړی ښځی بې سیرته دا ناولې

---

*۱ ورمېږ، ګردن.

بیا په دښتې د «لیلي» قتل عام جوړ کړي

بیا بد نام کړي د «ایشچې» په شان سپین ږیرې

دا تر څو به لدې ظالمو باز خواست نه وي

دا چې خلک یې ځورولي او ربړلي

**ماینز ـ جرمنی ۲۵/۰۲/۲۰۲۰**

## کرونا

کرونا ده نن راغلي ټول عالم دی وارخطا

رب دا دې څه نازل کړل خلک تر تښتې په ژړا

څوک وايي دا د رب غضب دی، چې نازل يې پر بنده کړو

څوک يې بولي د دی عصر عجيبه غوندې بلا

که غضب وي ستا پخپله که بلا د زمانې ده

پر هغوې ور نازل کړه چې چړي وي يا ملا

پر هغو چې دا ملت يې غولولې په کراتو

بيا هم فخر ورته ښکاري دا تير کړه او تير خطا

د افغان ملت ترې خلاص کړه د دې واړه «ويروسو» څخه

که طالب يا جهادي دی يا داعش دی نن سبا

«بهين» وايي لويه خدايه دا سياسی شيطانان هم ټول

که په لاره نه سمېږي کړه يې اخته په «کرونا»

**ماينز ـ جرمنی ۵/۰۳/۲۰۲۰**

## مسافر ته

بېگاه شپه مې خوب ونکړ تر سحاره
ټوله شپه وم ستا چرتوکې ناکراره
دا تر څو به مسافر وې له وطنه
کاشکي راشې خپل هیواد ته گرانه یاره
زه پوهیږم «مسافري سخته خواري ده»
خو هیواد یې در په در کړ خدای لپاره
غریبي او لوږه دواړه مې قبول دي
دا ښکېلاک زه نه منم پدې خاوره
ستا نه شتون کې دلته بله لوبه پیل ده
«سقوې» یې بیا راوستې معلومداره
یو څوغلو او اجنټانو لاس یو کړئ
غواړي ستا په برخلیک شې دوی واکداره
بله دا چې ایراني اجنټ مست شوئ
نه پرېږدي چې دا ملت شي په کراره
څوک ناري د «خراسان» وهي، څوک ژاړي «سلیماني» ته
څوک «پایې» د« برق» وهینه، ترورونه کړي بې‌شماره
بل پاکستان ته بعیت کړئ، پاکستانی گټو ته ژمن دئ
دواړه ډلې پردي پال او توکم پال دي گنهکاره

زه «بهین» پر خلکو غبر کړم چې آی خلکو

که « یو» نشئ بیا به بله وي نندار ه

را ولاړ شئ دا خاین ټول را نسکور کړئ

کنه گرځئ به همداسې خوارو زاراو بې روزگاره

**ماینز ـ جرمنی ۱۲/۰۶/۲۰۲۰**

## شین شال

نه پوهیږم چې څه نیت لري څه خیال

داسې ښکاري چې لري ما ته کوم چال

په کراتو مې په زړه گوتې وهینه

نه ویریږي چې دا کار لري وبال

زما زړه یې ټپي کړئ په ناحقه

لدې پیښې اوس تیریږې پوره کال

بیا چې زه ورته شکوه د زخمي زړه کړم

راکوي نه د خبرو هیڅ مجال

وایي: ما چې هر څه کړي هغه ښه دي

ځه ته گرځه لیونۍ زما د وصال

زه همداسې یم «سرکښه زوروره»

دا زما د حسن زور دی او کمال

دا د مینی راز دې پټ ساته له نورو

مه کوه پدغه هکله نور ته سوال

زه «بهین» بیا ورته غلی ، غلی گورم

دا لگیا وي ډیر افسوس کړي زما پرحال

زړه کې وایم کاشکې زړه یې شي لږ نرم

چې پر سر یې ور له واچوم «شین شال»

ماینز ـ جرمنی ۱۰/۰۳/۲۰۲۰

## زمونږ گناه

د غمو پر سر بل غم شو کرونا

داسې ښکاري چې نړۍ يې کړه تباه

هرې خواته دي خبرې د وبا او د کرونا

خو له علاج يې عاجز دي اوسيدونکي د دنيا

زيات شمير خلک پدې مرض شولو اخته

ډير يې مړه کړه، ډير هم دي پدې خفه

ساينس‌پوهان هم دي حيران ودې بلا ته

طبيبان هم رسيدلي دي ژړا ته

ملايان هم چوپه خوله دي مسجدو کې

تاوېزګر او مداريان ناست دي کورو کې

خو د غنی او عبدالله جنګ پر چوکۍ ده

د دوستم هيله بيا خوب د مارشالۍ ده

هغوې دومره زړه تړلي پر چوکۍ

ته به وايي دا چوکۍ د دوی د پلار وه يا انا ده

يو ځو غله بيا پارلمان کې دي په تمه د پيسو

مګر د ملت له درده، واړه دي ناپوهه

طالبان او داعيشيان هم دي لګيا په وژنو د انسان

هغه څه کړي چې به يې ونکړي شيطان

د جهاديانو غم کم نه وو چې طالب شو اوس بلا

«بهين» نه پوهيږي خدايه چې مونږ څه کړي ګناه

**ماينز ـ جرمنی ۱۶/۰۵/۲۰۲۰**

## بدنیتي

چې په بد نیت را ته ګورې هسې ته
نه به ته د څه خاوند شې نه به زه
بدنیتي انسان پخپله خوري جانانه
د بدنیت مزاج خراب وي په هر څه
بدنیتی کې ګټه نشته ده آشنا
پام دې ساته چې هیر نکړې د چا ښه
د عزت خاوند به نشې ته هیڅکله
که د نیت وي چې ته ونه کاندې ښه
نن چې ستا دا کړو ته ګورم خپل هیواد کې
نه پوهیږم چې ډوډی خورې که واښه
چا پخپله خپل هیواد دی وېجاړ کړئ؟
چې لګیا یې نړوې کلی، بانډه
انسان نکړي هغه څه چې یو حیوان کړي
که نه نکیږي توپیر بیا د انسان او د یوه خره
وایم لعنتونه دې د خدای پر هغه چا شي
چې د «دین» په نامه خوري د خلکو زړه
د هلمند خلکو حالت ته لږ څه ځیر شه
دا کافر که مسلمان وو چې شول مړه

زه «بهین»دا درته وایم چې نور بس کړه
داسې نه چې خلک دې ماته کړي بیا خوله

**ماینز ـ جرمنی ۲۰۲۰/۱۰/۲۰**

## حرص او حسد

که دې حرص او حسد ګډ شو په مزاج
که هر څومره وې بډای بیا یې محتاج
ګرد ژوندون به دې حسرت کې سبا کیږي
تمام عمر به رنځور وې بې علاج
د دنیا خوند به حرام کړې پر ځان خپله
پخپل لاس به دی ژوند لوټ کړې او تاراج
د ځان ګټه د بل نقص به غوره بولې
ناروا به پر روا کاندې رواج
قناعت به دې حاصل نشي هیڅکله
که «بهین» دی پر سر کیږدي ښکلی تاج

**ماینز – جرمنی ۱۱/۱۷/۲۰۲۰**

**دوه ځلوریځی د ننګر هار په هکله**

ننګرهاره زه شریکم ستا پرغم
وایي بیا یې پر تا راوسته ماتم
بیا یې د دین تر نامه لاندې زهر تیت کړل
تباه غواړم دا ماران او دا لړم

***

ننګرهاره نن دي اورم بد خبر
وایی جوړ ده پرتا بل غوندي محشر
چې د کوم خاینو لاس و پدې کار کې
رب دي ورک کړي د دوی تخم له یو سر

**ماینز ـ جرمنی ۱۵/۰٤/۲۰۱۵**

***

**د «ابلیس» بچی**

دا کابل باندې څه حال دی؟
بیا یې د مړو جوړ کتار دی!
نه پوهیږم چې عمل د کوم وحشي وو
خو پوهیږم د ابلیس بچېو کار دی

**ماینز ـ جرمنی ۳۱/۰۵/۲۰۱۷**

**انسان**

له هغه انسان نه جار شم چې په فکر د انسان وي
انسانيت ورته ړومبۍ او منلی يې پخپل ځان وي
له هغه انسان نه ګرځه ليرې ليرې
چې د بل په فکر نه وي، صرف د ځان وي

**ماينز ـ جرمنی ۱۵/۱۰/۲۰۱۴**

***

**فيسبوک**

عجيبه يوه ترازو ده دا فيسبوک
کله درونډ باسي انسان او کله سپک
د چا لحاظ ورسره نشته، دا خپل کار کړي
دا انسان دی چې ځان درونډ تلي که سپک

**ماينز ـ جرمنی۱۳/۰۹/۲۰۱۴**

***

**شراب**

د شراب څښل آسان ندي يارانو
دلته شوق او ذوق پکار دی د زمريانو
که يو جام په سر راواړوې ته هسې
بيا به وانه اورې خبر د ملايانو

**ماينز ـ جرمنی۲۳/۱۰۹/۲۰۱۴**

**د مینی راز**

کله زړه را ته دا وایي چې خپل راز در له بربنډ کړم

بې له ویری، بې له شرمه دا ټول حال تا له څرگند کړم

خو نه په خوله درته شم وېلئ او نه يې زړه کې شم ساتلئ

راته گرانه يې جانانې، ستا په مينه زه سوگند کړم

**ماینز – جرمنی ۰۶/۰۶/۲۰۱۸**

***

**زما فتوا**

عزیزانو، دا فتوا واورئ زما

د وحشي انسان وژنه ده روا

که طالب یا جهادی یا داعشي وي

چې بیرحم شو، پرې رحم ده گناه

**ماینز – جرمنی ۱۹/۰۳/۲۰۱۷**

***

**آزادی**

آزادي که په لاس را نه وړې بندي يې

که هر څومره هم په ژوند کې ته خوندي يې

چې آزاد نه يې په ژوند کې پدې پوه شه

یا به جوړ در نه ملا وې یا چړی يې

**ماینز ـ جرمنی ـ ۲۷/۰۱/۲۰۱۸**

**خوشحالی**

هر یو زړه چې خوشحالیږي زه خوشحال یم*
هر انسان چې سوکالیږي زه سوکال یم
د هیڅ چا په بدي نه یم په ژوندون کې
پدې هکله نه په فکر د ثواب نه د وبال ایم

**ماینز- جرمنی ۱۲/۰۲/۲۰۱۶**

***

که قسم راکړی په ذات د کردگار
په وار وار به درته وکړم دا اقرار
څو ملا او اخوند ورک نشی له ملکه
نه به صلحه ووینی او نه قرار

**ماینز- جرمنی ۲۷/۱۰/۲۰۱۸**

***

**د وجدان قاضی**

که یو غم له چا کړم لیرې زه راضي یم
که یو زړه کړمه خوشحاله زه حاجي یم
که انصاف زما عمل د بل په حق وي
دا گواه ده چې د خپل وجدان قاضي ایم

* «با هر دلی که شاد شود شاد مېشوم» (فانی)

**افسوس**

ډیر افسوس مې پر خپل قام دی
هر ژوندی زمونږ بدنام دی
چې ژوندئ وې بد یې وایو
خو چې مړ شي بیا خوشنام دی

**ماینز ـ جرمنی۲۰/۱۱/۲۰۱۴**

***

**سیاف**

دا سیاف هم عجیبه غوندې انسان دی
نه پوهیږم چې کافر که مسلمان دی
په خبرو کې دی یو، عمل یې بل دی
داسې ښکاری چې پیرو د لوې شیطان دی

**ماینز ـ جرمنی۰۱/۰۶/۲۰۱۶**

***

**د حمېدگل مړینه**

همدا اوس مې خبر واورید له مېډیا
چې حمېد لدې نړئ شولو فنا
ډیر مظلوم د ده د لاسه شهیدان شو
خدایه ورکړی دی خاین ته لویه جزا

**ماینز ـ جرمنی۱۵/۸/۲۰۱۵**

**عبادت**

خلک مسجد ته ځي چې هلته عبادت کړي

ځيني ځيني عبادت کې هم خيانت کړي

وي ولاړ مخ پر محراب حضور د خدای ته

مگر ذهن کې بيرون وي جنايت کړي

**ماينز ـ جرمنی۲۰/۰۷/۲۰۱۵**

***

**څلوريځه**

هيڅوک مونږ نشو زغملئ

د چا ښه نشو ليدلئ

تل د بل عيبونه ښيو

خو خپل عيب نشو کتلئ

**ماينز ـ جرمنی۲۴/۱۲/۲۰۱۴**

***

**وينا او عمل**

ما له ډيرو اوريدلي دي وعظونه

په عمل کې بيا دوی نور کوي کارونه

د وينا اغيزه هله څرگنديږي

څه چې وايي هسې وي ستا عملونه

**ماينز ـ جرمنی۰۷/۱۰/۲۰۱۴**

**بدخشانه**

بدخشانه بدخشانه

په ما يې له ځانه گرانه

دا څه پيښه په تا وشوه

چې يودم شوې پريشانه

رب دی بيا آباد سمسور کړه

خوشحالي دی کور په کور کړه

ستا د هر شهيد لپاره

دا تياره کبر پر نور کړه

**ماينز ـ جرمنی۲۰۱۴/۰۵/۰۳**

***

**د روژی تپې**

شونډې دې مه رپوه ډېرې

که زه روژه يم زړه زما په اختيار نده

***

يار مې د يوې مَڅُو بخيل دی

زه له ناچارې ګرده ورځ روژه ګرځمه

***

په آخرت کې به دا چيغ کړم

چې په روژه کې يار په شونډو غولولم

***

د ملا دا فتوا صحيح ده

چې يوه مچو د چا روژی ته تاوان نکړي

***

د سهاري چرګه مردار شې

ستا په آذان زما آشنا له غيږې ځينه

***

په روژه ماتي يو ځل راشه

شونډې دې راکړه چې پرې تنده ماته کړمه

***

د ملايانو خبر مه اوره

ما اوريدلي په روژه کې د شونډانو ثواب ډير وي

***

سينې دی جګې، جګې مکړه

قسم پر خدای چې همدا اوس روژه پرې خورم

***

روژه پر شونډو نه ماتيږي

که خولګۍ راکړې په ثواب کې به دې راشې

***

زړګيه لږ ته صبر وکړه

اوس مې روژه ده يار ته هيڅ وېلۍ نشم

***********

په روژه ماتي مې قسم دی

د تراوو په وخت دی هم زه يادوم

***

ستا د سرو، سرو غمبورو جار شم

چې بر مچو يې پيشلمۍ راځينې هير شو

***

يار مې خپه دی بيا ښيرې کړي

خدايه روژه ده ته يې ښيرې قبولې نکړې

له زړه مې یو الله خبر دی

چې زه درځمه ته بهانه راته روژه کړې

***

اختره ژر راشه ظالمه

چې دیار شوندې په بهانه ترې وچیچمه

***

بېګاه مې یار خولګۍ را نکړه

خدایګو نن ګرده ورځ زه وږی ګرځیدم

**ماینز ـ جرمنی۲۰۱۵/۱۵۱/۷**

***

**اتفاق او يووالی**

هر وېاله چې وي يوازې وچېدل يې برخه ليک ده

څاڅکي که را ټول شي لوی درياب ځنی جوړيږي

***

د يوې لښتی ماتيدو کې ستونزه نشته

ستونزه د ګېډۍ په ماتيدو کې ده چې زور غواړي

****

څو جلا يو د زخمي ګوتو په شان يو

کله که يو سوک شو ډيرې خولې به شي پرې ماتې *

---

* مرحوم پژواک:
تا جدا هستيم انگشتان افگاريم ما
مشت اگر گرديم از آن دندان‌ها خواهد شکست

## د نثاراحمد بهین لنډه سوانح:



نثاراحمد بهین د الحاج نظرمحمد زوی د کابل ولایت د بګرامیو ولسوالی د الوخیلو په کلي کی زیږیدلی، لومړنی او متوسطه زده کړه یې د کابل ښار د دقیقی ښوونځی او د نادریی په لیسه کې تر سره کړې او بیا د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځی د ژورنالیزم له څانګی څخه فارغ شوی دی. ده خپل لوړ تحصیلات د نوی ډهلی د «ال انډین اف ماس کمونیکیشن په انستیتوت» کی د «نړیوال ژورنالیزم» او په غیرمنسلکو هیوادو کي د خبري آژانسونو د کار په برخه کی بشپړ کړی دی.

نومړی په ۱۹۷۴ کال کې د اطلاعاتو او کلتور په وزارت کې په کار ګمارل شوی او دا لاندی دندې یې په هغه وزارت کې ترسره کړې دي:

- د فولکلور او ادب د مجلې مسوول مدیر
- د وزارت «د فولکلور او ادب» د ادارې مشر
- د پروان ولایت د اطلاعات او کلتور مشر او د «پروان ورځپاڼې» مسوول مدیر
- د افغانستان رادیو د روزنې اداری مرستیال
- د افغانستان رادیو د «پښتونستان» د پروګرامونو لوی مدیر
- د حقیقت انقلاب ثور ورځپاڼې غړی.
- د اختصاصی څارنوالی د اسنادو او اړیکو رئیس
- د افغانستان د «یونسکو د ملی کمیسون» په پروژو کی د برخی اخیستنی د پروګرامونو متصدی او د یونسکو د نړیوالی مجلی « کوریر» (استازی) د «پښتو» ژبی مسوول مدیر.
- په هندوستان کی د باختر اطلاعاتی آژانس د نمایندہ ګۍ مشر او خبریال.

د ښاغلی نثاراحمد بهین زیات شمیر آثار (مقالی، اشعار او مصاحبی) د هیواد د ننه او بهر کې نشر شوي دي.

ده د مهاجرت په دوران کې هم زیات فرهنګي او تنویري کارونه سر ته رسولي دی او ډیر کلونه په جرمني کی د «افغان کډوالو» د شورا د رئیس او د «تصویر» د جریدي د مسوول په حیث د خپلو هیوادوالو په چوپړ کې صادقانه دندې ترسره کړی دي.

اوس مهال؛ نثاراحمد بهین په جرمني کې د «ماینز» په ښار کی د خپلی کورنی سره اوسیږي.